# د پښتو شعر
# هندسي جوړښت

پوهیالی محمد اسمعیل یون




۱۳۷۷ لمریز کال

# د پښتو شعر
# هندسي جوړښت




پوهیالی محمد اسمعیل یون

۱۳۷۷ لمریز کال




ط

## مننه او کور ودانی

دا اثر د بناغلي وزیر ګل پښتونیار په مالي لګښت خپور شو. فرهنګپال وزیر ګل پښتونیار د خدای بښلي حاجي اول ګل زوی، اصلاً د ننګرهار ولایت اوسېدونکی دی. د کابل له حبیبې لیسې څخه فارغ شوی او د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو له پوهنځي څخه یې لیسانس تر لاسه کړی دی. اوس د امریکا په متحده ایالاتو کې استوګن دی. د دې اثر لیکوال د وزیر ګل پښتونیار له دې پښتوپالنې او فرهنګپالنې نه مننه څرګندوي.

## د کتاب پېژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د پښتو شعر هندسي جوړښت. |
| لیکوال | : | پوهیالی محمد اسمعیل یون. |
| خپرندوی | : | د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي پښتوڅانګه. |
| کمپوزېنګ | : | ایشیا سافټ، پېښور - پښتونخوا. |
| ټایپ | : | سید نعیم پاچا |
| کمپوز | : | حفیظ الله. |
| شمېر | : | ۵۰۰ توکه. |
| د چاپ نېټه | : | ۱۳۷۷ل/ ۱۹۹۸ع کال. |

چاپ : دانش کتابخانه، ډهکی نعلبندی قصه خوانی - پشاور

# نیو لیك

سر لیک | مخ


د لیکوال په باب څو خبرې ........................ الف
د پښتو شعر هندسي جوړښت، یو هنري او ښکلاییز نوښت ......... ج
د لارښود استاد نظر ......................... و
سریزه .................................... ۱


## لومړی څپرکی


ګډ شعري فورمونه ........................... ۵
۱- غزل او ډولونه یې ......................... ۵
۲- څلوریزه (رباعي) ......................... ۱۹
۳- قطعه .................................. ۲۲
۴- بولله (قصیده) ........................... ۲۴
۵- دویزه (مثنوي) ........................... ۳۴
٦- دریيز (مثلث) ............................ ۴۰
۷- مستزاد ................................. ۴۲
۸- څلوریز (مربع) ........................... ۴۴
۹- پینځه ییز (مخمس) ........................ ۴۷
۱۰- شپږیز (مسدس) .......................... ۵۲
۱۱- اوه یز (مسبع) .......................... ۵۵
۱۲- اتهیز(مثمن) ............................ ۵۸




۱۳- لسیز (معشر) .......................... ٦۰
۱۴- ترجیع بند .......................... ٦۴
۱۵- ترکیب بند .......................... ٦۷
۱٦- ټول قافیز .......................... ۷۲

## دویم څپرکی

پښتو ازاد شعر او ډولونه يې .......................... ۷۵

## دریم څپرکی

د پښتو اولسي شاعرۍ فورمونه .......................... ۹۰
۱- لنډۍ .......................... ۹۰
۲- سروکی (نیمکۍ) .......................... ۹۲
۳- کاکړي غاړې .......................... ۹۷
۴- د اتڼ نارې .......................... ۹۹
۵- ببولاله .......................... ۱۰۳
٦- چاربیته .......................... ۱۰٦
۷- مقام .......................... ۱۱٦
۸- بدله .......................... ۱۱۸
۹- لوبه .......................... ۱۲۱
۱۰- داستان .......................... ۱۲۳
۱۱- ټکتۍ .......................... ۱۲٦

## څلورم څپرکی

د پښتو اولسي شاعرۍ ځینې نور فورمونه .......................... ۱۲۸
پایله .......................... ۱۳۷
اخځونه .......................... ۱۳۸

# د ليکوال په باب څو خبرې

ما لپاره د ډيرې خوښۍ ځای دی، چې د کابل پوهنتون ځوان استاد او د پښتو زيارکښ ليکوال او ښه شاعر ېږ ما ګران محمد اسمعيل يون د کابل په ډيرو سختو شرايطو کې د يو بل نوي کتاب په ليکلو بريالی شوی دی او زياته خوشالي لا په دې کې ده چې اوس يې چاپ ته آماده کړی او چاپيږي.

ده مهرباني وکړه او له مانه يې وغوښتل چې څو کرښې د سريزې په توګه پرې وکاږم. خو زه په دې سريزه کې ددې اثر د ښاغلي ليکوال په باب څو خبرې کوم.

د شپېتمو کلونو په اوايلو کې لا ښاغلی محمد اسمعيل يون پوهنتون ته نه و شامل شوی او د خپلو منځنيو زده کړو وروستي کلونه يې تېرول خو ما به دی ليده چې په ډير ذوق او شوق يې د کابل مطابعو ته منډې رامنډې کولې او آثار يې چاپول. د کابل له ځينو جريدو سره يې همکاري کوله؛ په مشاعرو کې يې برخه اخيستله. د ده هڅو او استعداد دی په خپلو همزولو ځوانانو کې ښه وځلاوه. ده د هغه مهال په ځوانانو کې ښه موقف او نوم پيدا کړ. د ليکوالو ټولنې او د کابل پوهنتون فرهنګي شورى ته يې لاره پيداکړه او له دغو دوو فرهنګي موسسو سره يې ښه د مزې همکاري وکړه.

دا مهال ده خپلې پوهنتوني زده کړې پای ته رسولې، د زده کړو تر څنګه يې خپلې فرهنګي هڅې لا پراخولې د پوهنتون د ځينو ځوانانو په مرسته يې په کابل کې د يوې فرهنګي ټولنې د جوړولو لپاره کار پيل کړ.

پر ډېرو مشرانو فرهنګیانو وګرځېد او زمینه یې دې ته مساعده کړه چې زموږ مشران، کشران، فرهنګیان سره کښېني او د خوشحال فرهنګي ټولنه جوړه کړي.

له دې ټولنې او ددې ټولنې له برې او د کارونو له پرمختګ سره یې اورنی مینه وښوده او دا مینه تر اوسه ورسره پالي او د ټولنې خپرنی ارګان شمشاد مجله د زړه په وینو چاپ ته آماده کوي او خپروي.

وروستي شپږ کلونه زموږ د هیواد او خلکو لپاره د ویر او ماتم کلونه وو، ډیرو لږو خلکو دغو ویرونو او ماتمونو ته زړه ونیولی شو، زیاترو فرهنګیانو هیواد پرېښود، اما ده دغو ټولو ناخوالو، ستونزو، تنګسو او کړاوونو ته ځان ټینګ کړ او په خپل هېواد کې پاتې او فرهنګي کار سره یې مینه تر پخوا لا زیاته شوه. د خپلې همدې مینې پر اساس اوس یې یوه پښه په پېښور کې وي او یوه په افغانستان کې، دلته په پېښور کې په خورا لوړ همت او بې ساري زیارکښی د هیله مجله چاپوي، کتابونه چاپوي او بیایې افغانستان ته رسوي او په کابل کې یې پر هغو پاتې فرهنګیانو وېشي.

دی اوس نه یوازې د چاپ او خپرولو په کار بوخت دی، بلکې له ډیرو مصروفیتونو سره سره په لیکلو او تالیف هم بوخت دی. مقالې، سرمقالې رسالې او کتابونه لیکي، هغه هم په داسې شرایطو کې چې د هیواد دننه نه د څېړنې لپاره شرایط برابر دي او نه منابع او ماخذ میسرېږي.

زه دده ټولې فرهنګي هڅې ستایم. د لا زیاتو بریالیتوبونو لپاره یې دعا کوم.

په درناوي

سر محقق زلمی هېواد مل

# د پښتو شعر هندسي جوړښت يو هنري او ښکلاييز نوښت

د هند د نيمې وچې په ادبي اسمان کې د علامه شبلي نعماني د "شعرالعجم" (که څه هم ادبي تذکره هم ده) د لمر وړانګو د پارسي شعر و شاعرۍ ګړليچونه دومره وځلول او دومره يې د پارسي شاعرۍ مراندي راښکلې چې نن هم د پارسي ژبې او ادب کېږدۍ پرې ښخه ولاړه ده. ان چې د لس اتو لسيزو د ادبي پرمختيايي بهير له چټکتيا سره سره دومره څوک پيدا نه شول او يا به يې د شعر العجم پر تلپاتېينې دومره باور وي چې پر شويو بديعي او صناعي تعريفاتو باندې يې د بيا کتنې اړتيا و نه انګېرله او د اغېزمنۍ اندازه يې له دې نه هم لګي چې ايرانيانو يې بېرته پارسي ژباړه اړينه وګڼله.

په پښتو کې هم د شعر العجم په څېر يوه اثر ته چې عربي او ديواني ادبي صنايع (غزل، رباعي، قطعه، قصيده، مثنوي، مستزاد، مثلث، مربع، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن، متسع، معشر، ترجيع بند، ترکيب بند او....) را وښيي اړتيا وه. که څه هم د شعر العجم په څېر منظم او اوډلي څه رامنځته نه شول؛ خو پښتو ليکوالو بيا هم خورې ورې هڅې وکړې او د ادبي فنون، روح ادب، د ادب مناره، قافيه، خوږه شپېلۍ، بديع او بيان، ليتکي، بديع او د پښتو شعر، د پښتو ادب په تاريخ کې قصيده، پښتو غزل او... په څېر څينې اثار رامنځته کړل چې دې هر اثر پر خپل وخت د ځانګړو صنايعو په پېژندنه او سپړنه کې په زړه پورې ونډه

واخیسته؛ خو په خپله د پښتو د اولسي او فوکلوري شاعرۍ د ځانګو او څېلونو د پېژندنې اړتیا ته په پاملرنه لومړنی لیکوال چې د یوې تخصصي او ځانګیزې (مسلکي) اړتیا په توګه یې د پښتو شعر د رغښت او سکښت اړتیا وانګېرله، هغه د پښتو ژېپوهنې نوښتګر او زیاړن استاد پوهاند ډاکټر مجاور احمد زیار و چې د شاعرانه او ژبنیو ازمېښتونو په رڼا کې یې "پښتو شعر څنګه جوړېږي" نومی اثر رامنځته کړ او د خپلې څېړنې او ازمېښتونو له کوچ او نچوړ یې دا را وایستل چې په پښتو شعر کې تر هرو درو څپو وروسته څلورمه څپه خجنه (فشاري) راځي اویوازې په پښتو شعر کې نه بلکې د ده دا سپړلی دود پر هغو شعري چوکاټونو هم سور راځي چې له عربي ژبې نه ورته راغلي دي.

د پوهاند زیار دغه نوښتنی هڅه رښتیا چې د پښتو شعر رغونې پر موضوع د یوه ځانګړي ازمېښت لرونکی اثر و چې په علمي او څېړنیزه جامه کې پښتو شاعرانو او د شعر مینه والو ته وړاندې شو. تر دوی وروسته که څه هم د اروابناد استاد روهي "شعر پېژندنه" هم د شعر پر تیورۍ او منځپانګه باندې یو ارزښتناک اثر و، چې د ژوندۍ شاعرۍ او ژمنې شاعرۍ تک و برید په ګوته کوي.

بنایي د همدغو دوو استادانو د استادانه او نوښګرانه روزنې او له دوی دواړو سره د همېشنۍ ناستې ولاړې اغېز و چې د دوی وتلي او رښتین پتمن او مینه وال شاګرد د پښتو تنکی او هڅاند لیکوال او خوږ ژبی شاعر ښاغلی محمد اسعیل یون یې د پښتو د اولسي شاعرۍ په بېلا بېلو څېلونو (ژانرونو) کې د یوه نوښت رامنځته کولو ته وهڅاوه او د شعر او نظم بدیعي تعریف ته یې داسې یوه سمبولیکه ژبه او یوه هندسي جوله ورکړه، چې په دودېدنې سره یې د شعر د جولیز ارزښت یو عادي مینه وال هم له سر خوږوونکیو تعریفونو پرته په ډېره اسانۍ کولای شي، چې په دیواني او اولسي شاعرۍ کې د قافیې (c,b,a او نور...)، ردیف (=)، مسره (—) له نښو نه په دې وپوهېږي چې دشعر قافیه، ردیف او نور لوازم کوم

ac

کوم دي؟

ښاغلي یون د تاکلیو نښو لپاره خپله ورکه له لرغونې نه نیولې تر ځوانې شاعرۍ پورې لټولې ده، چې دا لټون او څېړنه په خپله یو ډول پر تلې ته یوه بلنه غوندې هم ده.

د ده د دغو سمبولونو یا قیمتونو په تاکنه کې کېدای شي له تخنیکي او غږیز پلوه څه کمزورۍ تر سترګو شي او هغه څنګه چې یو خو یې دومره درانه ژبني او شعري نوښت ته په یوازې ځان اوږه ورته کړې او بل داچې له هر نوي ګام سره ګاواکي او د تیندك اندېښنه ارومرو ملګرې وي. خوله دې سره سره خبره په لوی سر کې پر دغسې یوه نوښتني چار باندې د لاس پورې کولو او اوږې ورته کولو ده. زه په داسې ترڅ کې چې ښاغلي یون ته د هېواد د سیاسي فضا په دغسې خړ پړتیاأو دوند کې د داسې یوه ستر نوښت په کولو پر مبارکۍ سربېره ځانګوالو شعر پوهانو ته هم بلنه ورکوم، چې ده ته په خپلو لوراندو لار ښوونو او نغوتو د ځوان کول په وده کې برخه واخلي. البته خپله دا یوه یادونه هم د ښاغلي یون د هځان فطرت د درناوي په ترڅ کې اړینه بولم چې که دی د خپل دې زیار په وراندې د ولولې د ځوانۍ په غوښتنه په ډېر لږ څه (پوهنیارۍ) نه وای بسیا شوی؛ نو ما د ده دغه زیار په ګانده (اینده) کې د ده د لوړو علمي او پوهنتوني رتبو لپاره بسنده ګانه، خو بیا هم ورته د مبارکیو د وراندې کولو او د نور پرمختګ په هیله خپله خبره د خوشال بابا په دې هیله منه وینا را لنډوم چې:

لا به ډېر ګلونه وا شي په دا باغ کې
د ګلزار د غوړېدلو یې اغاز دی

نمانځنه
محمد آصف صمیم
۷/۱/۱۳۷۷
پېښور

# د لاربنود استاد نظر

له ډېرې مودې راهیسې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په پښتو څانګه کې د پښتو شعر د شکلي جوړښت په باب د یو بشپړ علمي - څېړنیز اثر لیکلو ته اړتیا وه، له نېکه مرغه ښاغلي محمداسمعیل یون په خپل علمي هاند او هڅې سره دا علمي خلا ډکه او دا مهم ضرورت پوره کړ.

"د پښتو شعر هندسي جوړښت" د پوهنیار علمي رتبې لپاره د یون تاکلې موضوع ده. دا موضوع خورا ډېره جالبه، ضروري او جامع ده. محمد اسمعیل یون په ډېر زحمت، زیار او زغم سره دا موضوع په هر اړخیز ډول څېړلې ده. ګڼ اثار او منابع یې ورېسې کتلي او په پای کې یې له ګڼو نویو او پخوانیو اخځونو نه په کې ګټه اخیستې ده. اثر پر (۴) څپرکو وېشل شوی دی، په پیل کې سریزه راغلې چې د پښتو شعر په شکلي سکښت او د دې اثر د لیکلو د اړتیا په باب خبرې کوي. ورپسې د نظم هغه بېلا بېل فورمونه معرفي شوي چې په پښتو او عربي ژبه کې دود دي، بیا د پښتو ازاد شعر په باب څېړنه راغلې ده، ورپسې د پښتو اولسي شاعرۍ ګڼ فورمونه معرفي شوي دي. له دې وروسته په بل څپرکي کې د پښتو اولسي شاعرۍ ځینې نور فورمونه معرفي شوي، په پای کې یو پایله (نتیجه) راوړل شوې چې د دې کتاب په ټول څرنګوالي او په عام ډول د پښتو شاعرۍ پر شکلي رغښت باندې رڼا اچوي. سره له دې چې تر اوسه پورې د ښاغلي محمد اسمعیل یون یو شمېر نور علمي او څېړنیز اثار چاپ شوي او د (پوهنیار) علمي رتبې لپاره د ده هر یو اثر کفایت کاوه لکه "د ژبو او

ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود"، "افغانستان ته اوښتي فرهنګي زیانونه" او نور... پر هر یوه ده د (پوهنیار) علمي رتبه اخیستلای شوه. خو ده بیا هم د خپلې علمي ترفیع لپاره د "پښتو شعر هندسي جوړښت" نوې موضوع وټاکله. په ډېرو سختو او تنګو شرایطو کې یې خپله دا هیله پوره کړه او هغه اړتیا یې هم له منځه یوړه چې په پښتو څانګه کې د داسې یو اثر د نشتوالي له کبله محسوسېدله.

زه "د پښتو شعر هندسي جوړښت" علمي څېړنیز اثر د ښاغلي محمد اسمعیل یون د (پوهنیار علمي رتبې) لپاره وړ، پوره او بشپړ ګڼم او له اړوندو څانګو څخه هیله کوم چې نوموړي ته د دې ګټور علمي اثر له کبله د پوهنیار علمي رتبه تصویب او ورکړي.

په درناوي

پوهندوی محمد صابر خویشکی
د پښتو څانګې آمر

af

بسم الله الرحمن الرحيم

# سريزه

تر اوسه پورې په پښتو ادب کې یو شمېر داسې پوهنيز (علمي) اثار کښل شوي چې په هغو کې د پښتو شعر پر جوړښت او رغښت باندې رڼاچول شوې ده. دغه راز د پښتو شعر د مانيز او جوليز جوړښت په اړه ګڼ شمېر ليکنې شوي او يو شمېر بېلابېل فورمونه (شکلونه) تر څېړنې او شننې لاندې نيول شوي دي. هر فورم په جلا جلا ډول څېړل شوی او ځانګړنې يې په ګوته شوي دي. له همدې کبله د پښتو شعر (نظم) شکلونه په توليز (عمومي) ډول پر دوو لويو برخو وېشل شوي دي: (۱)

۱- د شعر يا د نظم هغه فورمونه او چوکاټونه چې له عربي څخه پښتو ته راغلي او دلته زموږ په ژبه کې دود او باب شوي دي. سره له دې چې دا شعري فورمونه له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلي خو د پښتو ژبې د غږيز جوړښت تابع دي. په دې مانا، د نظم هغه قوانين چې په عربي ژبه کې د عربي نظمونو لپاره دود دي هغه نه مني او د پښتو نظم خپل جوړښت يانې څپېز- څجيز (سېلاب - تونيك) سيستم پرې تطبيقېږي.(۲)

د غږيز او څپېز څجيز جوړښت له مخې دا شعري فورمونه يا صنفونه هغه قوانين مني چې د پښتو د نورې اولسي، ملي او يا لوستې شاعرۍ د نظمونو پر بېلا بېلو فورمونو تطبيقېږي.

په دې شعري چوکاټونو کې په توليز ډول د (۱۳) په شاوخوا کې شعري فورمونه موجود دي لکه: غزل، رباعي، قطعه، قصيده، مثنوي، مستزاد، مثلث، مربع، مخمس، مسدس، ترجيع بند، ترکيب بند، معشر او...(۳)

۲- هغه شعري فورمونه يا د نظم چوکاټونه دي چې هغه په خپله د

پښتو شاعری زیږنده دي او یا هم له پخوا څخه په دې ژبه کې باب دي. اکثره دا شعري چوکاټونه په نورو ژبو او په ځانګړي ډول د ګاونډيو ژبو په شاعری کې لیدل شوي نه دي. داسې ښکاري چې دا شعري فورمونه د پښتو ژبې د غږیز او اهنګین جوړښت پر بنسټ رامنځته شوي او خوند یې هم په همدې ژبه کې دی. د دې شعري فورمونو خینې یې قافیې او ان ردیفونه هم لري خو خینې یې بیا له دې څخه هم ازاد دي خو د غږونو او څپو داسې پرله پسې اوډنه او انتظام لري چې د نظم هرې مسرې ته یو ډول ځانګړی ترنم او اهنګ ورکوي او هغه خوند پوره کوي چې څوك یې له منظوم کلام څخه اخیستلای شي. د یو منظم قانون له مخې د اهنګ لوړوالی او ټیټوالی او د ژبې له غږیز جوړښت سره بشپړ پیوستون د پښتو ملي اولسي شاعری ډېره خوندوره کړې ده. له همدې کبله خو دا شاعري زموږ د اولس د موسیقی له څپو سره ډېره ښه اوډلتیا مومي او کله چې بیا دا دواړه ښکلي هنرونه سره یو ځای شي نو بیا د دردمنو زړونو زنګ لړې کري.

د پښتو ژبې د شعر دا چوکاټونه هر یو بېل بېل شکل لري، د څپو د شمېر او د مسرو د څومره والي او څرنګوالي له پلوه یو له بله بدلون مومي خو بیا هم د څپیز خجیز جوړښت له مخې پر ټولو یو قانون تطبیقرږي. یانې له هرو دریو څپو وروسته څلورمه څپه خج (فشار) اخلي. د یادونې وړ ده چې همدا نظام پر هغو شعري چوکاټونو هم د تطبیق وړ دی چې له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلي دي.

د پښتو شاعری خپل چوکاټونه لندی، سروکی، لوبه، بګتی، داستان، چاربیته، بدله، نارې یا غږونه، کاکړې غاړې او نور دي.

د دې تر څنګ په پښتو ادب کې د ازاد شعر یا د ازاد نظم یو بل ډول شعري فورم هم موجود دی. ځینې کسان دا شعري فورم له نورو ژبو څخه پښتو ته راغلی شعري فورم بولي خو ځینې نور ادب پوهان بیا پر دې ټینګار کوي چې دا هم د پښتو ژبې د نورو شعري چوکاټونو په څېر د پښتو شاعری زیږنده دی. دوی وایي د پښتو اولسي شاعري او ازاد شعر تر منځ زیات ورته والی موجود دی، د پښتو ملي شاعری ځینې فورمونه هم د قافیې او ردیف له قیدو بند څخه ازاد دي او د مسرو اوږدوالی او لنډ والی لري او ازاد شعر هم. نو په دې وجه پښتو ازاد شعر یا ازاد نظم له پښتو ژبې نه پر دی شعري فورم

نه شي ګنل کېدای. د دې یادونه هم پکار ده چې په پښتو ازاد شعر کې ځینې هغه قیدونه او قوانین چې د پښتو شعر شعري چوکاټونه یې ثابت ساتلي او هغو ته یې یوه مشخصه بڼه ورکړې هم له منځه تللي دي. د دې شعري چوکاټونو تر منځ ګډه او مشترکه وجه د وزن شتوالی او د څپېز خځیز قانون منل دي.

ازاد نظم یا ازاد شعر لکه د لنډۍ، چاربیتې، غزل او یا هم نورو په څېر کوم ټاکلی شکل نه لري. لکه څنګه چې یې له نامه څخه ښکاري شاعر د خپل درد او اند د افادې لپاره کولای شي خپلو ازادو شعرونو ته بېلابېلې بڼې ورکړي خو (وزن) بیا هم تر اوسه پورې د ازاد شعر یو رغوونکی رکن (توک) دی.

لکه څنګه چې د مخه یادونه وشوه تر اوسه پورې په پښتو ادب کې د پښتو شعري فورمونو د تشخص لپاره ګڼ شمېر لیکنې شوي او یو شمېر کتابونه لیکل شوي دي. په دې لیکنو کې د پښتو شعر د تخنیکي جوړښت په اړه زیات معلومات او څرګندونې وړاندې شویدي. خو بیا هم داسې یوې رسالې ته اړتیا وه چې په هغې کې د پښتو شاعرۍ د بېلابېلو چوکاټو هندسي جوړښت ترسیم شي او د هغو د بدن سیستم افاده کړي.

دا اړتیا هغه وخت ډېره را منځته کېږي چې څوك عملاً په پوهنځي او یا یل روزنیز مرکز کې د پښتو شاعرۍ د جوړښت پر څېړنه، شننه او تشریح بوخت وي. هلته تشریح کوونکی مجبور دی چې د محصل او یا پ‍ښتونکي د ذهني قناعت د خروب لپاره د شعر هندسي شکل په تخته ترسیم کړي. زه چې عملا له داسې یو تدریسي بهیر سره مخامخ وم نو د محصلینو د پوهېدنې لپاره مې په ازمېیښتي (امتحاني) توګه د هر شعري فورم هندسي بڼه هغو ته رسم کړه. د دې عملیې له تکرار وروسته دې کار مثبته پایله (نتیجه) ورکړه او محصلین د خپل ذکاوت په اندول له ډېرو هغو شعري فورمونو سره یا په بشپړ ډول او یا په نیمه ډول اشنا شول چې پښتو کې کارېدل. د نظم د هرې برخې او رکن د افادې لپاره بېلا بېل علایم او نښانې وټاکل شول لکه د قافیې د افادې لپاره (a) نښه، د ردیف لپاره (=) نښه او د مسرې لپاره کرښه (—) وټاکل شول. د همدغو علایمو او هندسي نښو په واسطه د یو شعر هندسي جوړښت لاسته راتلای شي. د دې امکان هم شته چې په یو شعري

فورم کې څو ډوله قافيې موجودې وي نو د هغو بېلابېلو د افادو لپاره د قافيې څو نور شکلونه په دې ډول (c, b او d) وټاکل شول.

خو دا ټولې نښې نښانې د ښوونګي او محصلينو تر منځ د يوې قراردادي وسيلې په توګه د خپل مشکل د حل او د شعري جوړښت د هندسي شکل د افادې په غرض استعمالېدې، نه د مطلقو ټاکل شويو هندسي نښو په توګه.

اوس هم دا نښې د يو ازمېښت او وړانديز بڼه لري. د پښتو ژبې او ادب له درنو پوهانو او ليکوالو څخه په ډېره مينه هيله لرم چې د پښتو شعر د هندسي ترسيم لپاره زموږ دا هيله پوره او بشپړه کړي؛ زموږ په وړانديز غور وکړي او په پای کې داسې يوه پايله لاسته راشي چې د هغې په واسطه د دې امکان برابر شي چې د پښتو شاعرۍ د بېلابېلو چوکاټونو هندسي رغښت، اسکليټ او جوړښت ترسيم شي.

موږ به دلته لومړۍ پر هغو شعري چوکاټونو او د هغو پر هندسي جوړښت خبرې وکړو چې هغه له عربي څخه پښتو ته راغلي او دلته زموږ په ژبه کې دود دي او بيا به د پښتو پر نورو شعري فورمونو او زموږ د اولسي شاعرۍ پر شعري فورمونو رڼا واچول شي.



# لومړی څپرکی

# ګڼ شعري فورمونه

## ۱- غزل

په پښتو شاعرۍ کې غزل یو له هغو شعري چوکاټونو څخه دی چې ډېر عام مقبولیت لري. د پښتو اکثر شاعرانو د غزل په فورم کې زیات قلم چلولی دی. په همدې وجه خو په پښتو کې د خینو نورو شعري فورمونو په اندول زیات ظرافت او لطافت ته رسېدلی دی. د غزل ښکلا او ظرافت په دې نور هم زیات شول چې دې فورم ته د پښتني چاپېریال زیاتې انخورنې ورننه شوې، خوانو پښتنو شاعرانو ته هم غزل داسې یو فورم دی چې د دوی قلم په کې ښه ازمېښت کولای شي. اکثره خوان شاعران په همدې فورم کې خپل وزن ښه پوخ کړي، پر قافیې، ردیف، څپو او د نظم پر خینو نورو توکو خان واکمن کړي نو بیا نورو شعري فورمونو ته مخه کړي. پخوا به د غزل په فورم کې هغه مسایل راتلل چې په تولیز ډول یې غنایي او عشقي مسایل په خپله غېږه کې رانغاړل، وروسته بیا د غزل خولی د ژوند له نورو رنګارنګ ګلونو ډکه شوه او اوس غزل تر دې بریده رسېدلی چې په یوه مسره کې ناخوالې او په بله کې د ژوند د خوږو رنګارنګي بیانېدای شي.

په پښتو کې لومړنی شاعر چې دې شعري فورم ته یې پښتني شال ور په سر کړ هغه لوی خان خوشال بابا و چې د غزل په یوه مسره کې یې توره او بله کې زلفې وځلولې:

تــوره چې تــېرېږي خــو ګــوزار لره که نه
زلفې چې ول ول شي خو خپل یار لره که نه (٤)

د غزل د دومره عام مقبولیت او زیات استعمال یوه وجه شاید همدا

وي چې د يو مانيز پيوستون او تسلسل تر څنګ د غزل هر بيت په اصطلاح خانته پاچا دی او په خانګړي او خپلواك ډول ډېر دروند مانيز بار پورته کولای شي.

غزل لکه چې له نامه څخه يې ښکاري عربي کلمه ده او له همدې ژبې څخه پښتو ته دا فورم راغلی دی. له مانيز پلوه نورو هغو شعرونو ته چې غزليز، عشقي يا غنايي مانيز بار لېږدوي هم غزل ويل کېدای شي خو د فورم له پلوه بيا غزل خانګړې بڼه او شکل لري.

غزل معمولاً هغه شعري چوکاټ ته وايي چې مطلع ولري، يانې د سر بيت يې اکثرا مقفی وي او د بل هر بيت دويمه مسره يې قافيه ولري او د مطلعې قافيه تعقيب کړي، د بيتونو شمېر يې له ۵ - ۱۵ بيتونو پورې وي. د څپو شمېر يې معمولاً سره برابر وي. په ځينو خاصو غزلو کې کېدای شي د غزل هغه مسرې چې قافيه نه لري يوه څپه له قافيه والو مسرو څخه زياتې شي. په پښتو کې له ۷ څپيز څخه نيولې بيا تر ۱۵ څپيزو پورې غزلونه شته. قافيه په غزل کې اساسي توك دی خو رديف اختياري دی.

هر کله چې په مطلع کې له قافيې څخه وروسته رديف راوړل شو د همغه رديف راوړل په ټولو قافيه لرونکو مسرو کې حتمي ګڼل کېږي. په پښتو شاعرۍ کې د غزل فورم دا لاندې بڼې لري:

۱- بې رديفه غزل:

هغه غزل دی چې رديف ونه لري او په قافيه پای ته رسېدلی وي. لکه د پير محمد کاروان دا غزل:

په غرونو کې نښتر وي او په کلي کې چنار
په زړه کې مګر ځانګې وغځېږي يار

زلمي زلمي خوبونه دې په غېږه کې شيندم
که وخت دې چيرته وغځوي ګونځې په رخسار

په سر کې لکه غر يوسې ګلونه د جلال
له کوم سر نه چې ول تاو شي د دار لکه د ستار

راوغـخــوه لاس لــکــه د کــوچو غــوندې سپین
د تــورو ویـنــو ډك زړګــی مــې دی پــرهار پرهار

اعـجــاز دی د نـغمو کنې نو څنګه به یې وړای؟
دا دروند د غمو بــار پــــر نړې تار تار د ستار

بېــګـاه مې توتکی جوړې جوړې په خوب لیدې
کېـدای شــي ګډ شم نن د تورو سترګو په بازار

نــن خوندکوي چې سورسالو اور بل کړي پر ګودر
پـرون خــونــد کــړو اورونــو د روسـانـو پر کتار

ورخـه وریـــسې راولـه شـبـنـم غــونــدې طبیب
غــزل دې شو کــاروانــه د نرګس غوندې بــیـمار(٥)

د پورتني غزل هره مسره ١٤ څپې لري: چنار، یار، رخسار، دستار، پرهار، بازار، کتار او بیمار یې د قافیې کلمې دي.
ردیف نه لري. د دې غزل هندسي جوړښت په دې ډول دی:

a________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

______________________________
a______________________________

______________________________
a______________________________

______________________________
a______________________________

______________________________
a______________________________

په پښتو کې لومړی معلومه او لاسته راغلې منظومه ژباړه هم د غزل له فورم سره سمون خوري. د پټې خزانې په حواله ابو محمد هاشم ابن زیدالسرواني په (۲۲۳ - ۲۹۷ هـ) کې د یو عراقي شاعر محمد ابن خلاد یو شعر په پښتو ژباړلی دی(٦). د شعر پښتو منظومه ژباړه داده:

ژبه هم ښه وېناکاندي چې يې وينه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه

ژبور ورلـه ورخـي ويـنـايـې اوري
د درهـم خاوندان تل وي په وياړونه

که درهم يې خپنې ورك سوسي نتلی
پـر نـری يـې وي په خرو پيژندونه

کـه بـډای سپوني وبولي خلك وايي
دا ويـنـا ده رښـتـيـانـيه له رښتونه

کـه بـې وزلـی ووايـي رښتيا خبره
نـور ووايي دا خو سوني دې تيرونه

هـو درهم بنندي هر چاله لويه برخه
د درهـــم د خـــاوند هر خاى پرتمونه

درهـــم ژبـــه ده کـه څوك ژبور کيږي
ده وسله که څوك پرې کاندي قتالونه(۷)

د پورتني شعر هره مسره ۱۲ څپې لري (وينه، درهمونه، وياړونه، پيژندونه، رښتونه، تيرونه، پرتمونه، او قتالونه) يې د قافيې کلمې دي، رديف نه لري. هندسي شکل يې دادى:

a________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

________________________________
a________________________________

۲- ردیف لرونکی غزل: د غزل د فورم هغه بڼه ده چې د قافیې تر څنګ ردیف هم ولري. ردیف هغه یوه یا څو کلمې دي چې له قافیې څخه وروسته په یوه شکل او تر ډیره زیاته حده په یوه مانا تکرار راځي، دا غزل وګورئ:

د وخـــت ســـالار زمـــا تربور دی اشنا
دا نـــوم مـــې څکـه د منصور دی اشنا

د مـغـولـوالـې انتـهـا نـه ښکاري
د وخـــت خـــوشـال په رنتبور دی اشنا

د اتــك پـلـه نـه د امـو تـر غـاړو
د زړه وطن مې ټول چور چور دی اشنا

ســـتـا د نـظـر پـه تـعـویذو به رغي
ژونـــدون مـــې تا پسې رنځور دی اشنا

هـغـه چـې ته به یې تکور ته راتلې
د زړهٔ تـــپ هـغـسـې ناسور دی اشـنا

لـوګـی لـوګـی دې ښکـسـیار له کتو
درتلی چې نه شي بس مجبور دی(۸)

د پورتني غزل هره مسره ۱۱ څپې لري. تربور، منصور، رنتبور، چورچور، انځور، ناسور او مجبور، په کې د قافیې کلمې دي. (دی اشنا، دی اشنا) چې له ټولو قافیو څخه وروسته په یوه شکل او یوه مانا تکرار راغلي ردیف ګڼل کیږي.

د پورتني غزل هندسي بڼه داده:

=a________________________________

=a________________________________

____________________________________

=a____________________________________

____________________________________

=a____________________________________

____________________________________

=a____________________________________

____________________________________

=a____________________________________

____________________________________

=a____________________________________

د دې شکل بله بېلګه داده:

دا چې خرېږي مخامخ درته په دار سرونه
په دې وطن کې بس همدغه وو د کار سرونه

وږي يې هسې هم غاصب هميشه وږي په زوره
کشکې دا خل زموږ غنم وکړي د مار سرونه

زه خو د مينې ارمانجن وم ما خو زړونه غوښتل
کړل دې د عقل طرفدارو راشمار سرونه

د سپينو ستورو په ليدو شي فرشتې رايادې
داسې ښکارېږي لکه وي چې يې هوار سرونه

تر سرېتوب د زړو قدر يو په زره زيات شو
درويشه نن سبا واړه شول تر دينار سرونه(۹)

د پورتني غزل هره مسره ۱۵ څپې لري. (دار، کار، مار، راشمار، هوار او دینار) یې د قافیې کلمې دي. (د سرونه) په کې ردیف دی.

۳- دوه قافیز غزل: دا هغه ډول غزل دی چې دوه بیلابیلې قافیې ولري. مانا دا چې ددو مسرو د پای له قافیې څخه د مخه او یا د مسرو په منځ کې بله قافیه موجوده وي. په مطلع کې دوه بیلابیلې قافیې موجودې وي. د نورو مسرو قافیې د مطلعې خپله خپله قافیه تعقیبوي، که چېرې له هرې قافیې وروسته ردیفونه راغلي وي نو له هرې تعقیبوونکي قافیې څخه وروسته د هغې خپل ردیف هم په همغه بڼه تکرارېږي. لوړی به دلته هغه بیلګه راوړو چې ځنګ په ځنګ قافیې ولري :

کــه یـم ډېـــر د حوادثو په کشال شل
خو درځم که مې رهبر شه باکمال مــل

تا چې خوان د دلبرۍ د کرم عام کـــړ
درته جوړ شو د عاشق غریب دسوال ول

معشوقه چې د جـبـیـن غـوټه خوره که
د عاشق د خاطر غوټه شي فی‌الحال حل

د جفا وفا سودا په خپل اختیار که
د خوبانو په دربار کې دی دلال لل

اوښکـــې تـېل صبر پـنـبـه لري اور مـیـنـه
باري خدای ﷻ مې چراغ نه که د اقـبال بل

د هـنـر د چـابـک سـوار لافـه کـه مـاتـه
چې اسمان نیلي راواخلي د خپل چال چل

خو چې ولید شي د مینې په ورشو کې
رقیبان که علي خان لکه شغال غل(۱۰)

په پورتنی غزل کې د کشال، باکمال، سوال، في‌الحال، لال، اقبال، چال او شغال، د لومړی قافیې کلمې دي او (شل، مل، ول، حل، لل، بل، چل، او غل) د دویمې قافیې کلمې دي. ردیف نه لري.
هره مسره یې ۱۲ څپې لري.
د غزل دا ډول په پښتو شاعرۍ کې دومره باب نه دی. په پخوانیو دیوانو کې یې بېلګې شته. هندسي شکل او جوړښت یې دادی:

ba______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

______________________________
ba______________________________

د دوه قافیه ییزو غزلو بل ډول دادی چې لومړۍ قافیه د مطلعې د

مسرو په منځ کې راځي ورپسې بیا ردیف راځي ورپسې بیا بله قافیه او بیا ورپسې ردیف. د مطلعې هره قافیه خانته خانته ردیفونه او خانته خانته قافیې لري، یانې دا چې د وروسته مسرو قافیې په مطلع کې راغلې قافیې تعقیبوي. لکه د اسحق ننګیال دا غزل:

## خیبري تنده

تــول عــمـر درنه ده سپکیدو ته یې چې پرې نه ږدئ
خـــاوره پښـــتنه ده او پردو ته یې چې پرې نه ږدئ
پــرېـــږدئ خـیــبري تنـــده چې بیا په وینو ماته شي
ګـــرمـــه مـعـــرکه ده سرېدو ته یې چې پرې نه ږدئ
ســـره چــې ورې اورونـــه په کمڅو کې د پښتو ناوې
ښـــه ده چې لمبه ده لوګیدو ته یې چې پرې نه ږدئ
زلـفـــو د جانـــان ته چې څو سرې وینې غوټې نه شي
لاره تـــکـــه ســره ده وچېدو ته یې چې پرې نه ږدئ
نـــن مـــې د خوشال توره چې بیا هوس د شرنګ لري
تـاوه په شرنګ ښه ده چوپېدوته یې چې پرې نه ږدئ
ګـــورئ چـــې اسمان کې وریځ د ستورو د لار پل وهي
ورځ خو لاورېده ده تورو شپو ته یې چې پرې نه ږدئ
ورې یـــې چـــې غـــرور ته ټوپها په جام د سترګو کې
نـــیـــغـــه مـــو شـملـه ده کږېدو ته یې چې پرې نه ږدئ(۱۱)

دا غزل دوه قافیې او دوه ردیفونه لري. په لومړي قافیه کې (درنه، پښتنه، معرکه، لمبه، سره، ښه اورېده او شمله) د قافیې کلمې دي. (ده، ده) یې ردیف دی او په دویمه قافیه کې (سپکېدو، پردو، سرېدو، لوګېدو، وچیدو، چوپېدو، شپو او کږېدو) د قافیې کلمې دي. (ته یې چې پرې نه ږدئ، ته یې چې پرې نه ږدئ) یې ردیف دی. د دې غزل هندسي جوړښت داسې انځورېدای شي.

=b = a ______________
=b = a ______________

______________

=b = a ______________

______________________

=b = a ______________________

______________________

=b = a ______________________

______________________

=b = a ______________________

______________________

=b = a ______________________

______________________

=b = a ______________________

٤- ماته غزل: (ماته غزل) ورته خکه وايي چې په منځه ملا کې يا د هرې مسرې په منځ کې د اهنګ يوه وقفه راځي. په همدې منځ کې د ځپو د شمېر له مخې هر مسره پر دوو مساوي برخو وېشل کېږي، لکه په لاندې غزل کې چې (ګوره د زخمو غوټۍ) د مسرې لومړۍ برخه او (ځاځي مې له سترګو نه) د مسرې دويمه برخه ده. کله کله د اهنګ دا وقفه تر قافيې وروسته راځي او کله د رُديف يوه برخه هم ورسره نيسي او بيا له هغه وروسته وقفه او بيا نور رديف راځي. دلته به د دې ډول غزل يوه بېلګه وړاندې شي:

## د تصور ځپې

ګوره د زخمو غوټـۍ ځـاځـي مـې لـه سترګو نه
يـار تـه د کمـځـو غـوټۍ ځاځي مې له سترګو نه
نـن چې دا تياري کوځې تولې دي باغچې باغچې
جام جـام د سپـرلو غوټۍ ځاځي مې له سترګو نه
پـرېـوتـل لـه شـونـدو مـې ستا د اننګو ګلان
ګـرانـې د نـشـو غـوټۍ ځاځي مې له سترګو نه
مـات مې شو دصبرجام بنکل مې کړه مينوشه خوله
مـاتـې د تـوبـو غـوټـۍ ځاځي مې له سترګو نه
اوبنـکـه د ليـمو د بـاغ رغـړي دې قـدم پسې
ګـوره د اسـرو غـوټـۍ ځـاځي مې له سترګو نه

اوري د ننګیال پر سر ستا د تصور څپې
راغلې د خیالو غوټۍ څاخي مې له سترګو نه(۱۲)

په پورتني غزل کې (زخمو، کمځو، سپرلو، نشو، توبو، لېمو او خیالو) د قافيې کلمې دي. (غوټۍ څاخي مې له سترګو نه) يې ردیف دی. هره مسره يې ۱٤ څپې ده. هندسي شکل يې دا دی:



٥- بې مطلعې غزل: هغه غزل دی چې یوازې مطلع نه لري، یانې د سر لومړی بیت يې مقفي نه وي. د لومړي بیت دویمه مسره يې قافیه لري او د نورو بیتونو دوېمو مسرو قافیه يې د لومړي بیت دوېمې مسرې قافیه تعقیبوي. که چېرې دلومړي بیت ددويمې مسرې له قافيې وروسته ردیف راغلی وي نو د نوروقافیه والو مسرو ردیفونه هم همدا بڼه لري.

په پښتو لرغوني شاعرۍ کې د شيخ رضي لودي او نصر لودي تر منځ شوی شعري سوال او ځواب هم له همدې فورم سره ورته والی لري. د دې فورم يو بېلګه دا ده:

**هيله**

چې خزان وهلي بڼ يې سور او شين کړم
د خيالونو دنياګۍ ته مې نن راشه

د ګيلو مانو په شونډو کوتې کېږده
درواری شمه يوه شېبه پخلا شه

چې غوټۍ زما د هيلو پې سا واخلي
په سره غله کې پرخه د سبا شه

چې د مراوو خاطرو سترګې يې بنګل کړم
په ترخو شونډو مې يو وارې موسکا شه

د رنتبور د شپو دردونه مې هيرېږي
د غزل ذهن ته ننوزه ساه شه

په تپونو مې پټی د مينې کېږده
يوه هيله ده پوښتنې له مې راشه

وينې(څه وي) په کې نشته دي ګيلي دي
د پيوند سپېرو زخمونو له دواشه(۱۳)

په پورتني شعر کې (دا، پخلا، سبا، موسکا، ساه، را او دوا) د قافيې کلمې دي، (راشه) يې رديف دی. هندسي بڼه يې دا ده:

______________________

=a______________________

# ۲- څلوریزه (رباعي)

رباعي هم هغه شعري فورم دی چې له عربي څخه پښتو ته راغلی دی. دا فورم څلور مسرې لري، له خینو استثنایي حالاتو پرته چې په هغه کې کېدای شي د دریمې مسرې یوه څپه د قافیه والو مسرو له څپو څخه کمه یا زیاته شي په ټولیز ډول د ټولو څلور واړو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي. د رباعي لومړی بیت مقفی وي، درېیمه مسره یې قافیه نه لري او د څلورمې مسرې قافیه یې د مطلعې قافیه تعقیبوي. د غزل په شان په څلوریزه کې هم ردیف اختیاري وي خو کله چې د رباعي په مطلع کې ردیف راوړل شو څلورمه مسره کې به ضرور بیا هماغه ردیف تکرارېږي.

په پښتو کې د بېلا بېلو څپو په شمېر رباعي ویل شوي خو لس څپیزې څلوریزې په کې زیاتې دي. دا رباعي اکثره په ټول تللې دي. هغه رباعي چې لس څپیزې دي هره مسره یې د اهنګ له مخې تقریبا پر دوو برخو ویشل کېږي. پنځه څپې یې یو خوا او پنځه یې بل خوا په ټول تللې وي.

د لوی خان (خوشال بابا) هغه رباعیات چې د یو خانګړي کتاب په بڼه د (خوشال رباعیات) په نوم د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوي او شمېر یې تقریبا ۱۵۰۰ رباعیاتو ته رسېږي تقریبا په سلو کې ۸۵ څلوریزې یې لس څپېزې دي.

په اوسني وخت کې د څلوریزو بل بشپړ کتاب چې زموږ په لاس کې دی هغه د (پسته اور) په نوم د هېواد د نومیالي شاعر محمدصدیق پسرلي د څلوریزو مجموعه ده. په دې اثر کې څه کم (یوزر) څلوریزې راغلي چې ټولې لس څپیزې دي. د استاد قیام الدین خادم اکثره څلوریزې هم لس څپیزې دي.

یوه بله خبره چې د رباعي او څلوریزو په باب د یاد وړ ده هغه داده چې عام اولس او په ځانګړي ډول خیني سندرغاړي رباعي هغه ډول شعر یا نظم ته وایي چې معمولا د پند، نصیحت او اخلاقي مسایلو په باب ویل شوي وي او په موسیقی کې یې سندرغاړي تر غزل او یا کومې بلې سندرې د مخه وایي او په همدې موقع کې د اورېدونکو د ذهن پاملرنه خانته راجلبوي. دلته یوه تېروتنه رامنځته کېږي هغه دا چې اکثره سندرغاړي چې تر اصل غزل او سندرې د مخه کوم شعر لولي هغه اکثره د مانا د انتخاب له مخې وي نه د

فورم له مخې. څرنګه چې په رباعي کې هم ډېر زيات اخلاقي، ديني، او نور مسايل راځي نو دوی اکثره هغه شعرو ته چې دا موضوعات په کې بيان شوي وي هغه ته رباعي وايي، سره له دې چې که د فورم له مخې هغه غزل هم وي. دلته د دې يادونه په کار ده چې دا رباعي يا څلوريزه هغه رباعي نه ده چې عام اولس يا سندرغاړي يې په کومه مانا او بڼه استعمالوي.

څلوريزه يا رباعي دا لاندې بڼې لري:

۱- هغه رباعي چې رديف نه لري لکه د استاد خادم دا څلوريزه :

که دا غفلت وي پښتو ورکېږي

چې پښتو لاړه پښتون ډوبېږي

تللي خو تللي دي خير به غواړو

په پاتې قام مې اوس زړه رپېږي (۱٤)

په پورتنی څلوريزه کې (ورکېږي، ډوبېږي او رپېږي) د قافيې کلمې دي. رديف نه لري هره مسره لس لس څپې لري. هندسي شکل يې دادی:

a ______________________

a ______________________

______________________

a ______________________

بله بېلګه :

د مار که نه وي په تن کې زهر

سردار که نه لري خنجر د قهر

دا دواړه توکه به زما په پوهه

نه ياد په کلي وي نه ياد په شهر (۱۵)

په دې رباعي کې (زهر، قهر، شهر) د قافيې کلمې دي. رديف نه لري، هره مسره لس لس څپې لري.

۲- هغه ډول رباعي يا څلوريزې دي چې له قافيې څخه وروسته رديف هم لري.

دا لاندې څلوریزې وګورئ:

تـن بـه تاوان وای که مینه نه وای
ژوند به حیوان وای که مینه نه وای

انســان بـه څـــــه و د لارې دوړه
جهان به وران وای که مینه نه وای (۱۶)

په پورتنی څلوریزه کې (تاوان، حیران، او وران) د قافیې کلمې دي. (وای که مینه نه وای) یې ردیف دی. هره مسره لس څپیزه ده او د پښتو د اکثرو څلوریزو په شان هره مسره په منځه ملا کې نیمایي کیږي او تر لږې لفظي وقفې وروسته یې دویمه برخه لوستل کیږي دوه نورې بېلګې یې دادي:

د باطل زړه کې خـطـر پـیدا شـــو
تـیارې بوګنېږي سحر پـیـدا شـو

ضـمـیر مـوسـکـی شـو د انسانانو
سترګې پیدا شـوې نظر پیداشو(۱۷)

***

پـه تـوره شپه کې شمعه رڼاکا
مـــاوې: مـــاتـم کا ماوې ژړا کا

که پتـنـګـان دي سـتـې ایـرې شول
ماوې: پاکان دي عشق او وفا کا(۱۸)

شکل:

=a ___________

=a ___________

___________

=a ___________

## ۳- قطعه:

قطعه هم په هغو فورمونو کې راځي چې له عربي ژبې څه راغلي او په پښتو شاعرۍ کې باب شوي دي. قطعه لکه د څلوريزې (رباعي) په شان څلور مسرې لري خو له رباعي څخه يې تفاوت دا دی چې په رباعي کې لومړی بيت مقفی وي يانې دواړه مسرې يې سره قافيې لري او يوه شان قافيه تعقيبوي او د دويم بيت دويمه مسره ورسره هم قافيه وي خو په قطعه کې د لومړي بيت لومړۍ او د دويم بيت لومړۍ مسرې له قافيې نه ازادې وي او د دواړو بيتونو دويمې مسرې په خپل منځ کې يو شان قافيه جوړوي. قطعه هم په دوو ډولو ده:

۱- هغه قطعه چې رديف نه لري لکه:

بيا د ميو جام به مات کړم
چې ځواني شي زما تېره

په ځوانۍ کې ګناه خوند کړي
په پيرۍ کې تقوا ډېره(۱۹)

۲- هغه چې رديف لري لکه:

د احساس دوزخ کې اوسم
په ارمان د يو جنت کې

مساوات دې بر ملا شي
شي انسان دې په عزت کې(۲۰)

## ۴- بولله (قصیده):

قصیدې ته په پښتو کې (بولله) وايي. خپله قصیده عربي کلمه ده. په لغت کې (قصد کړای شوي) ته وايي. په عربي اصطلاح کې هغه شعر و چې د بیتونو شمېر به یې تر ۱٦ یا ۱۷ کم نه و او دا نوم د قصد له مصدره جوړ شو، چې معنا یې استقامت او اتصال، سموالی برابري او سوچه توب وو(۲۱). دا هغه شعري فورم دی چې د غزل په شان د سر لومړی بیت یې مقفی وي. د نورو بیتونو د هر بیت دویمه مسره یې قافیه ولري او د مطلعې قافیه تعقیب کړي. قصیده په شکل او جوړښت کې له غزل سره چندان توپیر نه لري، توپیر یې دا دی چې د غزل د بیتونو شمېر له ٥ څخه تر ۱٥ پورې وي او د قصیدې بیا له ۱٦ څخه تر دوو سوو یا تر دې هم زیاتو بیتونو پورې دی. پخوانۍ قصیدې له مانیز پلوه هر یوه اکثره په دریو برخو وېشل شویدي:

د قصیدې لومړۍ برخې ته تغزل یا تشبیب وايي چې په هغې کې شاعر تر اصلي موضوع د مخه د طبیعت ستاینه کوي. د قصیدې دویمه برخه د هغې اصلي موضوع ده. دا برخه له تغزل یا تشبیب نه وروسته پیلېږي او په دې کې شاعر د خپل ممدوح ستاینه کوي. د قصیدې درېیمه برخه دعائیه بولي چې په هغې کې شاعر د خپل ممدوح لپاره د خدای جل جلاله له دربار نه د ښېګڼې او هوساینې غوښتنه کوي.

په اوسنیو قصیدو کې پورتني نورمونه چندان په پام کې نه نیول کېږي. د غزل او ځینو نورو شعري فورمونو په شان په قصیده کې هم ردیف اختیاري دی، خو که مطلع کې راوړل شو نو په نورو دویمو مسرو کې یې راوړل حتمي کېږي. قصیدې دوه شکلونه لري یو هغه ډول دی چې ردیف نه لري او بل هغه ډول دی چې ردیف ولري. د پښتو لومړۍ معلومه لاسته راغلې قصیده په هغه شکل کې راځي چې ردیف نه لري. هغه قصیده داده:

د فلک له چارو څه وکړم کوکار
زمولوی هر ګل چې خاندي په بهار
هر غټول چې په بېدیا غوړېده وکا
ریژوي یې پاڼې کاندي تار په تار

ډېر مخونه د فلك څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار
د واکمن له سره خول پرېباسي مړ شي
د بې وزلو وینې توی کاندي خونخوار
چې له برمه یې زمري رېي ځنګلو کې
له اکوبه یې ډاري تیر و جبار
هم یې غشي سکني ډال د ژوبلورو
رستمان ځني ځغلا کاندي په ډار
چې یې ملاوې نه کرېږي په غښتلیو
دا فلك پرې وکا څه کاري ګوزار
په یوه ګردښت یې پرېباسي له برمه
نه یې غشی نه لیندی وي نه یې سپار
څه تیری څه ظلم کاندې ای فلکه
ستا له لاسه ندې هېڅ ګل بې له خار
په ویرژلو لور نه کرې په زړه کراړیه!
پرنتلیو اور وې د غم ناتار
هېڅ روغی مې په زړه نسته ستا له ځوره
بېلوې په ژړا ژړ مین له یار
له تېربو دې اوښې ځاځي له اوریځو
چینې ژاړي په ورېټ ورېټ ستا له شنار
نه به لاس واخلې له ځوره نه به لورې
نه به ملا کړې له بې وزلو له ترار
نه به زړه وسوځوې په هیچا باندې
نه به پریوزې له ګردښته له مدار
نه به وصل کړې مین له بل مینه
نه به درملي تپونه د افکار
ستا له لاسه دي پراته ژوبل زګیروي کا
هر پلو ته تپي زړونه په ځار ځار

کله غوټې کاندې مراندې د زړګیو
کله تېر باسې وګړي هوښیار
کله تکې واچوې پر نازولیو
کله څیرې کړي ګرېوان د نمنځي چار
کله غورځوې واکمن له پلازونو
کله کېنوې په خاورو کې بادار
زموږ پر زړونو دې نن بیا یو غشی وویشت
ودې ژوبلله په دې غشي هزار
پر سوریو باندې ویر پریووت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړې په بل دار
یو وار شو اسیر په لاس د میرځمنو
انتقال یې وکړ قبر له بل وار
په سماوو یې ودان اهنګران وو
په تیکنه وپر درست جهان او ښار
د محمود د ژوبلورو په لاس کښېوت
چې غزنه ته یې باتلی په تلوار
ننګیالیو لره قید مړینه ده څکه
سه یې والوتله هسك ته پر دې لار
تر نړی یې غوره خاورې هدیره کا
د زمریو په بېړیو کله وي خوار
په دې ویر د غور وګړي تور نمري سول
په دې ویر رڼا تیاره سوله د ښار
ګوره ښاخي رڼې اوښې له دې غرونو
دا کړونګی ساندې لي په شوږهار
نه هغه زرغا د غرونو د بېدیا ده
نه د زرکیو په موسادی کتهار
نه غتول بیا زرغونېږي په لاښونو
نه بامې بیاموسیده کا په کهسار

نه له غرجه بیا راځي کاروان د مشکو
نه رادرومي غور ته بیا جوپې د شار
د پسرلي اوره تودې اوښې تویننه
مرغلرې به نیسان نه کړي نثار
دا په څه چې محمد ولاړ له نړیه
په ویرینه یې سوغور تول سوګوار
نه ښکارېږي هغه سور د سور په لتو
نه ځلېږي هغه لمر پردې دیار
چې به نجلیو په نڅا په کې خندله
چې به پېغلو کا اتڼ قطار قطار
هغه غور په ویر ناتار د واکمن کښیوت
هغه غور سود جاندم غوندې سور اړ
لاس دې مات شه ای فلکه چې دې وکا
محمد غوندې زمری د مړینې ښکار
شین زړګی فلکه ولې لا ولاړ یې؟
ای د غور غرونو په څه نه شوئ غبار
مځکې ولې په رېږدلو نه پریوزې
لاندې باندې شئ چې ورك شي دا شعار
چې زمري غوندې واکمن خي له جهانه
چې څوك نه کړي پر نړی باندې قرار
سخ په تا ای محمده د غرو لمر وې
په نړی به نه وي ستا د عدل سار
ته پر ننګه وې ولاړ په ننګه مړ سوې
هم پر ننګه دې په ننګه کا ځان جار
که سوري دې په تلك ویر کاندي ویرمن سول
هم به ویاړي ستا په نوم ستا په تبار
په جنت کې دې وه تون زموږ واکمنه
هم په تا دې وي ډېر لور د غفار(۲۲)

د شیخ اسعد سوري په دې قصیده کې (کوکار، بهار، تار، زار، خونخوار، جبار، دار، ګوزار، سپاړ، خار، ناتار، یار، شنار، ترار، مدار، افګار، خار، هوښیار، چار، بادار، هزار، دار، وار، اوښار، تلوار، لار، څوار، تبار، شورهار، کتهار، کهسار، شار، نثار، سوګوار، دیار، قطارقطار، سوراړ، ښکار، شعار، قرار، سار، جار، تبار، او غفار) د قافیې کلمې دي ردیف نه لري هره قافیه واله مسره یې ۱۱ څپې او بې قافیې مسره یې ۱۲ څپې ده.
هندسي شکل یې دادی :

a________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

________________________
a________________________

______________________________

a______________________________

______________________________

a______________________________

______________________________

a______________________________

______________________________

a______________________________

(تر پایه)

د قصیدې بل شکل دا دی چې له قافیې وروسته ردیف هم ولري.

## د کابل زخمي سندرې

د زړه زخـــم مـې د سرې مالګې کمر دی
راخـتــلی پــرې د سـپینو اوښکو لمر دی

د کـــابــل زخـمــي سندرې یې رانه وړې
د بـــاګـــرام (ســروش) له ما نه مرور دی

د بـنـــو او شـــونډو یاد هم رانه هېر دی
جـــوړ غـزل مې له خنجر او له پرهر دی

د لمـــر پېغـلــه د غـــربـت زیړي نیولې
سپین سحرمو زیړ په شان د مازدیګر دی

پـــر مـــریـــو مـــو بـــلا چـــړې شوې پخې
قـصابان د کـلـــي وایـــي چـې اختر دی

چې په تبر د بتانو مغزي غوځ کړي
چا وې موږ کې هم پیدا زوی د ازر دی

مات کودړي یې له تاندو وینو ډک دي
د شهیدو پېغلو څه رنګین کودر دی

ما یې زړه اوربېده دی مې چغې ناورې
هو د کانو په غوږونو کوڼ خیبر دی

سپین لباس د پربښتو ابلیس اغوستی
جاهلان وایي وارث د پیغمبر دی

پوروړي یې د ژوند د سکو ډېر دي
زموږ کلي ته راغلی سوداګر دی

کوټنې د ماشومانو شهیدانې
پر ساحل راخور د وینو سمندر دی

کړې رندې د تصویرونو مړو مړو اوښکو
تښتېدلی له هندارو نه جوهر دی

مانوګان یې خرخوي پرنهګانو
د بې نوحه بیړی څه سپیره لنګر دی

د حسین او زوالجناح وینې مباح دي
دلته هلته دا بیان د هر شمر دی

هر اغزی رانه د وینو قلنګ غواړي
د تناکو په پنو کې مو سفردی

بـــې جــرســه قـــافلې ته يې جرس کړ
مات مې زړه کې د ظالم د غشي سر دی

څـــه سـړه تـــوده پـيـرزو د يار اغيار ده
د يـــو لاس کـــې زمهرير د بل سقر دی

ګـــرخـــوم يې در په در چيرته يې کيږدم
د ژونـدون د مـړي پـيـټی مې پر سر دی

دٔ ژونـدون پــه هـديره کې يې ايسار کړم
يـــو اشـنـا راتـــه نـکير دی بل منکر دی

هــر دجـــال دي د مـهدي جامې اغوستې
پـــه وطـن راغـلـــی بـــې نېټې محشر دی

پــر ګـلـونـو بـــاروتـــي خـپـسې ناستې
د وږمـــو پـــه لـمـبو لـولپه ځيګر دی

يـتـيم ژونـد ايسار د غشو په سيلی کې
تـــاو لـه ځانه يې د زخم سور څادر دی

د اياز څـنـــې د ګـــور چـينجي خوړلي
د مـحـمـود دربار بې مشکو بې عنبر دی

چـــې له هند به يې وړمې د چندن راوړې
د پـښـــتـون د طوطي مات هغه وزر دی

بـيـا يــې کړی دی اودس د چا په وينو
چـــې خــطاب يې د وژنې پر منبر دی

په خلوت کې بنه د تاك تيونه روي
په جلوت کې سوی لوی د کوثر دی

د کاروان د وطن نوم په وينو ليکم
ما تراشلی ورته روح لکه مرمر دی.(۲۳)

په دې قصيده کې (کمر، لمر، مرور، پرهر، مازيګر، اختر، ازر ګودر، خيبر، پيغمبر، سوداګر، سمندر، جوهر، لنګر، شمر، سفر، سر، سقر، پرسر، منکر، محشر، خيګر، څادر، عنبر، وزر، منبر، کوثر او مرمر) د قافيې کلمې دي. (دی،دی) يې رديف دی. د شعر هره مسره ۱۲ څپې ده. جوړښت يې په دې ډول دی:

=a ______________________
=a ______________________

______________________
=a ______________________

______________________
=a ______________________

______________________
=a ______________________

______________________
=a ______________________

______________________
=a ______________________

# ۵- دوه یزه (مثنوي):

دوه یزه (مثنوي) هغه ډول شعري فورم دی چې هر بیت یې په خپل منځ کې ګډه قافیه لري (مقفی وي)، د بیتونو شمېر یې ثابت نه دی. په ټولو قافیه والو شعري چوکاټونو کې مثنوي تر ټولو خلاص او لوی شعري فورم دی. شاعر کولای شي په دې شعري فورم کې خپل مقصد تر وروستي بریده بیان کړي، څکه نو اکثره شاعران د لویو موضوعګانو د بیان په غرض دا فورم انتخابوي، لکه ابوالقاسم فردوسي چې د شاهنامې د لیکلو لپاره دا فورم وټاکه. په مثنوي کې که شاعر په یوه قافیه کې له ستونزې سره مخ شي نو بلې ته تللی شي. په مثنوي کې هر بیت ځانته قافیه لري، کېدای شي ځینې بیتونه یې ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري خو د ټولو بیتونو وزن مشترك وي او د څپو شمېر یې سره مساوي وي. مانا دا چې مثنوي مقفی مشترك الوزنه او د مساوي څپو لرونکی فورم دی.

لکه د مخه چې مو یادونه وکړه په مثنوي کې کېدای شي ځینې بیتونه ردیف لرونکي وي او ځینې په قافیه ختم شوي وي نو په دې صورت کې مثنوي دا شکل اختیاروي:

a______________________________
a______________________________

=b______________________________
=b______________________________

c______________________________
c______________________________

همداسې نور بیتونه

او یا هم دا شکل:

=a________________________________
=a________________________________

b________________________________
b________________________________

c________________________________
c________________________________

او همداسې نور بيتونه

دلته به د مثنوي يوه بيلګه راوړو:

## ته به راغلې

پـه سـتـرخوان به مې پرته وچه ډوډۍ وه
بـل څـه نـه وو هـمـېشه وچه ډوډۍ وه

مـاشـومـان مـې وو زلـخوړي او خوا توري
شـول پـيـکـه يـې د مـخونو روښان ستوري

مـا ويـل چـې بـدلـوم بـه دغه حال زه
تـولـوم بـه پـه څـه توګه زر او مال زه

يـوه شپـه بـيـا تـوره شپه وه ډېره توره
زه پـه غـلا پـسـې روان ومـه لـه کوره

چـې لـه ورايـه څـه رڼا په نظر راغله
يـو طـرف تـه خـيمه ستا په نظر راغله

چـې خـيـمـې تـه در دننـه شوم ژړا وه
کـډه سـتـا پـه مـاشـومانو يو غوغا وه

سوځېدل واړه له لوږې په سره اور کې
د خوړلو هېڅ شی نه وو ستا په کور کې

بس يو ديګ و د ستا و مختـه په اور باندې
ايشولې دې په دغه ديګ کې سپاندې

ماښومان دې تېر ايستل په دې خبره
(چې کتغ دی پخېدونکی ژر تر ژره

د يو څه ساعت لپاره صبر وکړئ
بيا به واړه خپل ځانونه پرې ماړه کړئ)

زما زړه کباب په دغه ننداره شو
ځان له دې کبله تيټ راته ښکاره شو

چې په کور کې مې پرته سپينه لوږه وي
په سترخوان مې همېشه سپينه لوږه وي

خو د شکر سبق بيا هم له ما هېر شو
فرق د حق او ناحق بيا هم له ما هېر شو

پر ازغنه لاره باندې مې سفر و
سور د يبلو پښو په وينو مې هر پل و

لرې ځای ته وم روان له لرې ځايه
ګله من ومه په دې سبب له خدايه

چې د پښو څپلۍ يې هم نه وې راکړې
تودې ځمکې مې وې دواړه تلې ورې

په شنه زړه مې پرې کوله اوږده لاره
په عذاب ومه د ژوند له درانه باره

زړه مې غوښت چې ژباتي ساخيستل بس کړم
مات د ژوند دا زنګ خوړلی شان قفس کړم

خو چې خان مې جوړاوه و دغه کار ته
هغه وخت وم نژدې شوی یوه ښار ته

د دې ښار په دروازه شوم ورننه
د ارام په اراده شوم ور دننه

چې یوه خو قدمه لاړمه په وړاندې
برابرې مې شوې سترګې په تا باندې

په څکېدو وې را روان زما په لورې
په بدن دې وو لاسونه او سر پورې

مګر ښې دې ګوره چاوې قلم کړې
نیم ورنونه دې وو پاتې نیم يې وړې

زما زړه کباب په دغه ننداره شو
زما حال خراب په دغه ننداره شو

ما ویل چې له خپلیو یم بېزاره
يبلې ښېې مزل کولای شم په لاره

ښادی نه غوارم له پاکه خدایه نورې
زما ښې دې وي زما په جسم پورې

پـر مـا بـانـدې همغه عجيبه وخت و
شپه اوورځ به مې په سرکې خيال دتخت و

پـه دې نيـت مې تولې کړې وې لښکرې
مـسـت اسـونـه تيـرې تورې کلکې زغرې

چـې پـه زور د چا تخت ونيسم باچا شم
په دې تـوگـه بـه تـر هر چا سر بالا شم

هـر يـو لاس بـه ماته پورته په سلام وي
هـر يـو سر بـه مـاتـه تيت په احترام وي

خـو تـر دې خـبـره وړاندې چې روان شم
پـه وطـن د چـا ورگـډ لـکـه تـوپان شم

تـه مې وليدې چې تول په اوښکو لوند وې
در په دره وې پـه دواړو سـترگو ړوند وې

خپـلـه ويـره پـاچـاهـي دې وه بـايـللې
د وطـن حـکـمـرانـي دې وه بـايـللـې

هـر څه هر څه وو خپل ورور له تا اخيستي
تـاج و تخـت يې و په زور له تا اخيستي

په دې خيال چې بيا دتخت دعوه ونه کړې
پـه ده بـانـدې دوباره حمله ونـه کـړې

سـتـا لـه سره يې ستا سترگې وې ايستلې
پـه دبـره يـې سـتـا سـترگې وې ايستلې

زما زړه کباب په دغه ننداره شو
زما حال خراب په دغه ننداره شو

ما ویل داسې منصب دې خدای میرات کړي
چې د سر دښمنان دومره د چا زیات کړي

چې خپل ورور یې هم کار اخلي له خنجره
دواړه سترګې یې په زور کاږي له سره(۲٤)

په پورتنۍ دوه یزه کې تاسو ولیدل چې اکثره بیتونه یې بېلا بېلې قافیې لري. ځینې بیتونه یې ردیفونه لري او ځینې یې نه لري. خو ټول یې یو ګډ وزن تعقیبوي او د څپو د شمېر له مخې سره مساوي دي.

## ٦- دریېز (مثلث):

هغه ډول شعري فورم دی چې هر بند یې (درې مسرې) لري. درې واره مسرې یې متحدالوزنه وي او یو شان قافیه تعقیبوي. په مثلث کې قافیه اساسي او ردیف اختیاري توکي وي. د مسرو د څپو شمېر یې سره برابر وي . د سر بند درې واړه مسرې یې په خپل منځ کې کډه قافیه لري. یانې درې واړه مسرې یې قافیه لري، د هر بند دوه لومړۍ مسرې په خپل منځ کې او درېیمه مسره یې په قافیه کې له مطلعې او یا د سر د بند له قافیې سره یو شان وي. په ټولیز ډول د دې فورم هندسي جوړښت په دې ډول دی:

a________________________
a________________________
a________________________

b________________________
b________________________
a________________________

د مثلث د بندونو شمېر کېدای شي تر دوو زیات وي خو که د بندونو شمېر یې هر څومره وي همدا پورتنی عملیه پرې تطبیقېږي. دلته به د مثلث یوه بېلګه وړاندې کړو چې څلور بندونه لري:

څه اوښکې وینې اوري پر دې سپینو چنارو
یـو شـور دی پـورته کېږي د اروا له منارو
ژړا مـې نـه ودرېـږي پـه خـوږمنو ولولو

اورونـه دي اورونـه چـې بـلېږي په تقدیر
بـې وسې یو بې هیلې د دې ظلم په تدبیر
څـه مینـه محبت رانه لاهو شول په اورو

د ګـل پاڼې مې شولې د جانان د مخ حیا
پـه تـورو سترګو پاتې شوه له ما ټوله دنیا
څه ستړې ستړې لاړې شوې دهیلو په مېږو

د ګـلـو بــه دې بـیا هغه دوران کله راځي
د هـجــر پـه سوز تللی به ارمان کله راځي
څه تور مُـهرونه لګي له خندا په ډکو خولو(۲۵)

د پورتني شعر په لومړي بند کې (چنارو، منارو، ولولو) سره د قافیې کلمې دي، په دویم بند کې تقدیر او تدبیر د قافیې کلمې دي او (اورو) د لومړي بند له قافیې سره یو شان ده. په دریيم بند کې (حیا، دنیا) په خپل منځ کې د قافیې کلمې او (مېږو) د لومړي بند له قافیې سره یو ډول ده. څلورم بند کې (دوران، ارمان) په خپل منځ کې د قافیې کلمې دي (کله راځي) ردیف دی (خولو) د لومړي بند له قافیې سره یو شان ده. هندسي جوړښت یې دادي:

a____________________________
a____________________________
a____________________________

b____________________________
b____________________________
a____________________________

c____________________________
c____________________________
a____________________________

=d____________________________
=d____________________________
a____________________________

## ۷- مستزاد:

"د رباعي، غزل یا قصیدې په هره مسره باندې چې یوه لنډه غونډې مسره ورزیاته شي مستزاد ګڼل کېږي. په دې لحاظ لومړۍ یا لویه مسره وړوکې مسرې ته د مانا له مخې احتیاج نه لري ځکه چې ټوله مانا په لومړۍ مسره کې بشپړه وي. جوړښت یې داسې دی چې یوه مسره یې لنډه او بله اوږده وي. دلته به د بېلګې په توګه د مفتي عبدالحنان لغماني یو مستزاد شعر ولولئ:

شپه د دوشنبې ده چې نبي صاحب روان شو
تېر تـر لامـکان شـو
شـپـه د دوشـنـبـې وه ورتـه راغـی جـبرائیل
ویـې کړ قـال و قیـل

زه یم رالـېـږلـی پـه جـلـتـۍ سـره جـلـیل
پـاخـېـږه خـلـیـل
شـاه نـبـي زمـوږه لـکـه سـروه خرامان شو
تـېـر تر لامکان شو
***

شاه نبيﷺ چې سپور شو په براق باندې له واره
ویـې نـیـولـه لاره
سـل زره ملـکـې بل په لاس یې شعله داره
تـلـې به یو هواره
لاړه تـر اسـمـانـه حـاضـر ماه تابان شو
تېر تـر لامکان شو
***

پـاس په اسـمـانـو کې چې به ته نبي عرب
شـاه عـلي نصب
صـف پـه صف مـلـکـو بـه د ده کـاوه ادب
امـر وه د رب

پاتې په خپل ځای کې جبرائیل ورته حیران شو
تــېر تر لامکان شو
***
اتلــس کــالــه شپه وه د مــعــراج وکړه یقین
تــلــلــی نــازنین
تــاج یــې د لولاك په سرولهت شو د یاســین
راغی ماه جبیــن
خــــکـه پــه کې واړه ســربــلــنــده امتیان شو
تېر تر لامکان شو
***
تــه "عــبــدالحــنــانــه" د دنــیـا کــارونه بس که
مینې ته هوس کــه
خان دې د نــبــي اخرزمان په در کې خس که
بند دې دا نفس که
ګوره هر غزل دې مشهور په درست جهان شو
تېر تر لامکان شو(۲٦)
هندسي شکل یې دا دی:

=a________________________________
=a______________
b________________________________
b______________
b________________________________
b______________
=a________________________________
=a____________________

ترپایه

## ۸- څلوريز (مربع):

مربع هغه ډول شعري فورم دی چې هر بند يې څلور مسرې لري. د لومړي بند څلور واړه مسرې يې په خپل منځ کې همقافيه وي، يانې يو شان قافيه تعقيبوي. رديف په کې اختياري دی که د سر په مسره کې رديف راوړل شو نو د لومړي بند په څلور واړو مسرو کې يې راوړل حتمي دي. د نورو بندونو درې مسرې سره په خپل منځ کې همقافيه وي خو د څلورمې مسرې قافيه يې د لومړي بند د مسرو قافيه تعقيبوي او که لومړی بند رديف ولري نو د نورو بندونو د څلورمو مسرو قافيه او رديف بايد همغه د لومړي بند قافيه او رديف تعقيب کړي. که شاعر هر څومره د بندونو زياتول غواړي نو پورتنۍ قاعده بايد مراعات کړي. بله خبره داده چې که چېرې د لومړي بند مسرې رديف ولري نو دا ضروري نه ده چې د ټولو بندونو لومړۍ درې واړه مسرې دې هم رديفونه ولري بلکې د ټولو بندونو څلورمه مسره د لومړي بند د شکلي جوړښت يانې د قافيې او رديف تعقيبولو ته اړه ده. بل ټکی دا دی چې اکثره د ټولو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي خو په خينو خاصو حالاتو کې کېدای شي د کوم بند او څپو شمېر د يوې څپې په اندازه زيات يا کم شي.

د دې فورم هندسي جوړښت داسې ترسيمېدای شي:

=a____________________
=a____________________
=a____________________
=a____________________

b____________________
b____________________
b____________________
=a____________________

دا بڼه هم درلودای شي:

a________________________________

a________________________________

a________________________________

a________________________________

=b________________________________

=b________________________________

=b________________________________

a________________________________

دلته به د مربع یوه بېلګه وړاندې شي:

دریغــه نوی عجب وخت د نوبهار وای
شــګوفــه هر رنـګ ګـلونه د ګلزار وای
لاس تــر لاس ســره نـیولی ما او یار وای
پــه مــزه مـزه خــواره ویــل تکرار وای

***

یا وای ناست یا سره ګرځېدای په باغ کې
مـعـطـره وای د ګــلــو پــه دمــاغ کــې
دوه پــه دوه مو سره راز وای په فراغ کې
هــم مانع په دواړو سترګو ړوند اغیار وای

***

دواړه ســتــرګې تورې کړې په رنجو وای
مــلــتــانــي نـکــریزي ایښې پر لاسو وای
سره ناست غاړه غړی راز مو ورو ورو وای
شــانــه کــړې تورې زلفې پر رخسار وای

***

راحــت نــاست په سیاحي وای د سرو ګلو

بل غوغا رابانديږ پاس واى د بلبلو
هم هنگام واى د سرو لبو د زبهبنلو
مى خوري واى د سرو لبو مى تيار واى
***
توركاكل يې پر تندي بانديږ واى كښاته
په دماغ كې د گلشن ناست واى مخ راته
سره گلان مې واى حيران و تماشاته
لاس مې ايښى پر اوږو د گلعذار واى
***
تورې زلفې يې پر مخ شمال وهلاى
غوريشى يې له ږمنځې خلاصولاى
ما يې پاس پر سينه خوله ور جوړولاى
شرمولى بوى د اوښكو د تاتار واى
***
هر چې ما ورته ويلاى دده هو واى
هم مطلب د ده قبول زما پر ليمو واى
په خوښى واى نوبت تلى د غمو واى
زماخواست منات دده په خپل اختيار واى
***
په خوښى واى سره ناست غمونه بس واى
هم زانو پر زانو ايښى دسترس واى
پر سپين مخ مې لاس وهلى په هوس واى
بل په غاړه يې د سرو گلونو هار واى
***
خدايه تاته دي اسان كه دغه وشي
تږى زړه به په وصال د يار اوبه شي
د "جمعه" د زړه ارمان به پاته نه شي
دده ورون داشنا سر لاس پر رخسار واى(٢٧)

# ۹- پینځه یز (مخمس):

د مخمس او مربع عمومي جوړښت تقریباً یو شان دی، توپیر یې په دې کې دی چې په مخمس کې تر مربع یوه مسره زیاته وي. یانې دلته هر بند پینځه مسرې لري. د لومړي بند پینځه واړه مسرې یوه قافیه تعقیبوي او د نورو بندونو څلور مسرې په خپل منځ کې هم قافیه او د پینځمې مسرې قافیه یې د لومړي بند د قافیې تابع وي. له لومړي بند وروسته د هر بند له قافیې څخه وروسته کېدای شي په څلورو مسرو کې بېل ردیف راشي. خو پینځمه مسره په قافیه او ردیف کې د لومړي بند د قافیې او ردیف تعقیبونه کوي. پینځه یز دا لاندې بڼې درلودلای شي:

a__________________________________
a__________________________________
a__________________________________
a__________________________________
a__________________________________

b__________________________________
b__________________________________
b__________________________________
b__________________________________
a__________________________________

همداسې نور بندونه

په یوه مخمس کې کېدای شي خینې بندونه ردیفونه هم ولري په لومړي بند کې هم ردیفونه راغلي وي خو ردیف بیا هم په مخمس کې اختیاري دي خو قافیه د مخمس اساسي برخه جوړوي. د مربع په شان له خینې استثنایي بندونو پرته د مخمس د ټولو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي. کېدای شي خینې مخمسونه د ردیف د لرلو له کبله داسې بڼه ونیسي:

=a________________________________
=a________________________________
=a________________________________
=a________________________________
=a________________________________

=b________________________________
=b________________________________
=b________________________________
=b________________________________
=a________________________________

=c________________________________
=c________________________________
=c________________________________
=c________________________________
=a________________________________

او نور بندونه

دلته به د پينځه يز يوه بېلګه وړاندې شي:

د هجران له لاسه ناست يمه ويرژلی
لکه بت په غتو سترګو دم ختلی
بېهوده په صورت روغ په زړه نتلی
بېلتانه په مرګ حال يم رسولی
ربه راولې اشنا په سفر تللی

***

ډېر مې وکړ د هجران په بلا صبر
هېڅ مې صبر سرور نه شه په دا جبر
که مې ولګېده سر د غم په قبر
و مې نه ژړل په حال د مهر ابر

نشته ما غونډې هېڅوك په بخت کړلی
***

دا کوم شرم دی کوم درم د یاری
دا پیوند دی بدنما تر ویزاری
چې مې یار په توده زمکه د خواری
کښینې پاڅي خوار حیوان له ناچاری
او زه ښوی ښیرازه ګرځم سپین سپېڅلی
***

یا له یار سره ولاړ وای په رکاب کې
یا یې مړ وای د هجران په اول تاب کې
یا وای ډوب مدام د اوښو په سېلاب کې
حساب نه شوم د یوې چارې په باب کې
هسې پاتې شوم بې ابه مخ ناولی
***

تف زما په دا بې پته اشنایی شه
پف د برق و د برېښنا په روښنایی شه
لا مې حال تر دا بتر په جدایی شه
صد رحمت زما د یار په دانایی شه
چې یې خام وم په دا غم کې پېژندلی
***

چې په مینه کې کوتاه د چا قدم شي
مبتلا به لکه زه په درد و غم شي
په کلونو به جدا ځنې صنم شي
په جرګه به د ربتینو هسې کرم شي
چې به ما غونډې بې شرمه ګرځي غلی
***

که مې مینه په دروغ نه وي ربښتیا وي
په اسیا کې د هجران تللی کسیا وي

کــه دا نــه وي لېوني سر په صحرا وي
چې هېڅ نه شوم که مې څه شرم وحيا وي
لــه دې شــرمــه چـا ته پورته مه کتلی
***

هېڅ مــې خــونـد نشـته د سترګو غړولو
دي مــې کــانـي پــه تـنـدي دوړولــو
هــم مــې پــوسـت دی په وهل د لوړولو
يــم لايــق د هــر عــذاب د کـړولو
چـې بې يــاره کــړم لـه خلکو کور وکلی
***

نــورې چــارې کړم همه ناتــراشې لوارې
پــه مــذهـب د عــاشـقی ورانې ويجاړې
کـلــه کـلـه مــې کـه اوښـې په مخ لاړې
چــې له غمه مې شي تويې په مخ لاړې(۱)
***

يو د يـار د جــدايــی خواري نيستي شوه
بـلـه خـپـلـه بې پـتـي بــې هـمـتي شوه
يــو پلو د رقــيـبـانـو بـدنـيـتي شــوه
بــل پـلــو د تــور طــالـع بې شفقي شوه
عـــشـق پــه دا هــومــره بلا يم ازمويلی
***

ربــه مــه ګــورې زمــا و بې پـتـی ته
مـا و مــه سـپـارې زمـا بـې همتی ته
يــار مــې راولــې د ســترګو وويستی ته
نــور مــې مــه نيـسې د هجر ونيستی ته
وســوم دېــر لـکــه کـبـاب پــه اور نيولی
***

۱- د حميد ديوان په کابل چاپ کې يوه مسره له چاپه پاتې شوې ده.

د اشنا په ښکلي مخ مې سترګې واکړې
په ناسور مې د هجران پورې دوا کړې
تللی یار راسره وصل خوا په خوا کړې
ژر په ژر دا ناروا په ما روا کړې
که مې چېرې له اخلاصه یې بللی
***
که هر څو یار ته نژدې د زړه په یاد یم
په صورت چې څنې لرې په هېواد یم
شپه ورځ د خدای و داد ته په فریاد یم
په تش باد مې تسلي نه شي ناښاد یم
که مې یار د سر په سترګو ولید لی
***
تور طالع بر ګشته بخت د عشق په کار کې
بد قسمت او بد شامت په دغه لار کې
برناحقه بدری خورم په سمه لار کې
نشته ما غوندې هېڅوک په هېڅ دیار کې
په څه شوم زبون ساعت یم زیرېدلی
***
له هغه چې پوهېدلی په ښه بدیم
رسېدلی د پنجاه و پنج تر حد یم
مبتلا د ښکلي مخ په خال و خد یم
که د صدق شل سنده ښیم رد یم
یوه ښکلي په راستی نه یم منلی
***
که مې یو څله اشنا له هنده راشي
په هوس ورته ګلزار د غم صحرا شي
له هجرانه یې حاصله تبرا شي
فراغت د جدایي له چون چرا شي
نور "حمید" له اشنایي لاس وکښلی(۲۸)

# ۱۰- شپږیز (مسدس):

هغه ډول شعري جوله ده، چې هر بند یې شپږ مسرې لري د سر لومړي بند شپږ واړه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي. ردیف یې اختیاري دی.

د نورو بندو پینځه مسرې په خپل منځ کې هم قافیه او هره شپږمه مسره یې په قافیه کې د لومړي بند د مسرو د قافیې تابع ده. د مسدس ځینې بندونه کېدای شي ردیف ولري او ځینې یې کېدای شي ردیف هم ونه لري. خو قافیه د هر بند د هرې مسرې لپاره ضروري ده. دغه راز ټولې مسرې د څپو د شمېر له مخې سره مساوي وي اوهم یې وزن مشترك وي. له مربع څخه یې دوه او له مخمس څخه یې یوه مسره زیاته وي.

د مسدس هندسي جوړښت داسې ترسیمېدای شي:

a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________

b______________________________
b______________________________
b______________________________
b______________________________
b______________________________
a______________________________

او همداسې نور بندونه

دلته به د دې شپږيز يوه بېلګه راوړو:

حيف په داژوندون شه چې له ياره يم مهجوره
هر نفس غوځېږم د هجران په تېره توره
ژاړم پټ په زړه کې په خوله خاندم له ضروره
سترګې مې شوې دواړه په ژړا ژړا بې نوره
عقل له ما لاړ شه لېونی يم بې شعوره
دا قصه زما ده په تمام جهان مشهوره

***

لاس مې خپل کوتاه کړه د دنياله هره کاره
غم الم مې نشته له چا نه يم پرواداره
يار سره واصل شوم بې تلاشه بې ريباره
نن چې بهره مند يم زه له بوس و له کناره
سترګې څه رنګ نيسم د دلبر له ښه رخساره
تږی و اوبو ته همېشه وي ناصبوره

***

ته په دا سرو سترګو چې افت په ځان زما يې
ځان مې درقربان شه چې ترخانه ګران پر مايې
تش په دا ملال کاته له مانه هوش ربايې
زه رنځور د عشق يم ته ثاني د مسيحا يې
حورې به زه څه کړم ملا! څه يې راته ستايې
ماوته تر حورو خپله کښلې ده منظوره

***

څه وايې ناصحه زه مريد د مي فروش يم
هر چې راته وايي زه د ده حلقه بګوش يم
پند کړه وهوښيار ته زه خو مست وباده نوش يم
خلک دې تهمت راباندې وايي زه خاموش يم
اوښې مې بهېږي ترچشمې نه زيات په جوش يم
هم لړم له غمه سينه ګرمه تر تنوره

***

نــه ده د سرېـو بقـا زيـاتـه تـر حبـابه
خـونـه لا پـخـوا لـه خپله مرګه کړي خرابه
سيـنـد ده دا دنيا چې زغړول کا بې سهلابه
کـــام د اژدها دی دنيا هسك کړه سر له خوابه
ولـې "معزالله" پـه سـقـر درومـې بـې اسبابه
فـکـر د تـوښـې کـړه هميانی کړه خپله پوره.(۲۹)

# ۱۱- اوه یز (مسبع):

دا هغه ډول شعري جوله ده، چې هر بند یې اوه مسرې لري، د لومړي بند اوه واړه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي. د نورو بندونو شپږ مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه خو اوومه مسره یې په قافیه کې د سر دلومړي بند دقافیې تابع وي. له مربع، مخمس او مسدس سره یې یوازې دمسرو په شمېر کې تفاوت وي. نور جوړښت یې سره ورته دی. دلته هم ردیف اختیاري دی یانې دا چې کېدای شي ځینې بندونه یې ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري، خو که چېرې د لومړي بند مسرو له قافیو وروسته ردیف درلود نو د نورو بندونو وروستۍ مسره باید په قافیه او ردیف کې ضرور د لومړي بند د قافیې او ردیف تابع وي. دلته به د یو اوه یز (مسبع) بېلګه راوړو چې هم ردیف لرونکي بندونه لري او هم بې ردیفه بند. هندسي جوړښت یې دا دی:

=a______________________________
=a______________________________
=a______________________________
=a______________________________
=a______________________________
=a______________________________
=a______________________________

=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=a______________________________

همداسې نور بندونه...

و "ت" لــه تــوره وكـــاږه چـــې سپین شي
قـــاف و "س" ورســره واچوه چې شین شي
په تحصیف سرېې مخ پرېمینځه چې سین شي
مـعـون یې دوه سو لس که چې رنګین شي
نـور دې تولـه په یــوه نیم خای شین شي
جـوړ لــه دغـــه یوه نیمــه به امین شي
بـــې لـــه "نـه" بـه و ذکي و ته یقین شي
* * *
خه په کار دي بې له ده که جهان ستا شي
بـل د حـکـم قـاف تر قافـه پر هر چا شي
د قــارون تــر دنـیـا ډېــره ستــا دنیا شي
تــر سـخـا دې د حـاتـم تـېـره سخا شي
بـې بـقـا بـه تـر مـانـیـه د کـسری شي
عـــاقـبـت بـــه دې په خان پورې بلا شي
سخت مکان به دې د اور جوړ پرسجین شي
* * *
سرو مــال واړه د ده تــر نــامــه جــارکه
شــیرین خان یې تورې خاورې د دربار که
تــل پــر خان باندې کندلې د ښنو لار که
خــان لـــه خـــاصو عاشقانو سره شمار که
خــط پــر خان د ده د مینې په پر کار که
مــه وخــه لــه دغـــه خـطـه زړه قرار که
چــې نــامــه در بــانـدې جوړه د کمین شي
* * *
ښـــه تـصــدیــق بــاوري واړه په اقوال کړه
مــوافــق یـــې هــر یـــو فعل پر افعال کړه
خـــان نـــګـهـــه له فسادونو د محال کړه
کـمـــالات حـــاصـــل د ده د ښه کمال کړه

پــه دا حـــال سره موجود دده وصال کړه
زړه بــه چـــاود لــه دېره غـمه د لعین شي ★
لـــه اخـــلاصه دوست دار د چهار یار شه

---

پــر بـــزرگـیـه د حضرت صدیق اقرار شه
پس لــه ده حـضـرت عمر دی خبردار شه
پس له دوی حضرت عثمان گنه هوښیار شه
کـــل ولیـان دي تر ده لاندې فهیم دار شه
تــر دا هـســې بـزرگـی جـار د کـرار شه
پـیـروي د دوی کوه چې تینګ دې دین شي

* * *

مخالف چې څوك له دوی دي مخ بې توردی
کـوم به زیات تردوی گنې مکان یې اور دی
کــه بـادشاه شي د اقلیم ښکاره سرتور دی
یا عادل تر نوشیروان شــي هــم مـنـکـور دی
یـــا مـــدام کړي سخاوت لعنت یې پور دی
عـــاقـبـت یـې تـنـها تك د گور په لور دی
کـــی څـلــور طـرفــه لانــدې ترنگین شي

* * *

مـــا "جـمـعـه" په خپل قدر دي دوی منلي
مـــوهـبـات دور مـــوهـبـات چې دي راغلي
طـبـعـیـت در طـبـعـیـت یـې راسـتـولـي
وراثـــت در وراثـــت چـــې دي ویـلـــــي
اصلـــي ولـي مـــې پــر زړه ښـنـیـسـتـلي
ښـــاخ د پانې مې تر تـــن تـــولـــه وتـلـي
چـې مـې جوړ عین الیقین حق الیقین شي.(۳۰)

★ یوه مسره کمه ده .

## ۱۲- اته یز (مثمن):

د نظم هغه ډول دی چې هر بند یې اته مسرې لري، اته واړه مسرې یې په خپل منځ کې یو شان قافیه لري. ردیف په کې اختیاري دی. د بل هر بند اوه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي او اتمه یې د لومړي بند د مسرو قافیه تعقیبوي.

هندسي شکل یې دادی.

a________________________________
a________________________________
a________________________________
a________________________________
a________________________________
a________________________________
a________________________________
a________________________________

b________________________________
b________________________________
b________________________________
b________________________________
b________________________________
b________________________________
b________________________________
a________________________________

او نور بندونه

بېلګه :

تـوره شپـه شي نالیدونکي شان لاسونه
ان تـر لـمـره راتــه زبېښـي مي رګونه
لـه ډبــرو را بهـر شــي څــو لاښــونه
تــاووي راتــه پــر مــخ مــخ ډېــوالونه
تــروږمـی شي یو توپان شي سره تیغونه
پــریـکـوي تــر سـرو لانـدې مروندونه
وریـځــې وریځې شي زما د خولې اهونه
بــیـایـې سیوري ته شي دمه ستا یادونه
* * *

یــو پــه بلـه کــاروان لاړ شي د سلګیو
یــو سور لال را څخه ورك شي له ککیو
پــه لـمـحــې سیوري راپریوځي د پېړیو
پــه تــوتــو پــه سر شکاوه شم له ګړیو
ستــا د څنو په شرك باد شي په مستیو
د دې غــره غــوتــې شي تېرې له پګړیو
مــلا شــي مــاتــه د زړو زړو څــپـړیو
ســترګــې ډکــې او لامده شي ګریوانونه
* * *

ستاپه لوړې چې مې کتله هم منظر شي
مــاتــه وور څاڅکی د اوښکو سمندر شي
پــولــی ویــرسېــرې لــویې لکه غر شي
هریو ګل مې راته مات مات په ډندر شي
ستاپه کور مې چې د خیال کله سفر شي
له وریـښـمـو به مخ جوړ د هر حجر شي
پــه لـمن کې به مې کاني تول مرمر شي
نه یې پلورم که څوك راکړي پرې لالونه.(۳۱)

# ۱۳- لسيز (معشر):

هغه ډول نظم دی چې هر بند یې لس مسرې لري، د لومړي بند لس واړه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي او بې قافیې مسره په کې نه وي. د بل هر بند نهه مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي او لسمه مسره یې په قافیه کې د لومړي بند د مسرې له قافیې سره یو شان وي.

د معشر ټولې مسرې یو واحد وزن تعقیبوي.

په معشر کې هم ردیف اختیاري دی. که چېرې د لومړي بند له قافیې وروسته ردیف راغلې وي نو نور بندونه اختیاري دي چې ردیف ولري او که یې و نه لري، خو د هر بند وروستۍ مسره چې د لومړي بند قافیه تعقیبوي باید ضرور د لومړي بند قافیه تعقیب کړي او که چېرې لومړی بند ردیف ولري نو باید د هر بند وروستۍ مسره هم ردیف ولري. دلته یې هندسي جوړښت او یوه بېلګه وړاندې کېږي.

هندسي جوړښت یې دادی:

a________________
a________________
a________________
a________________
a________________
a________________
a________________
a________________
a________________
a________________

=b________________
=b________________

=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
=b______________________________
a______________________________

c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
c______________________________
a______________________________

او نور بندونه

معشر :

که راکوز شي مسيحا
اوبه راکا د بقا
غوښې راکا د عنقا
سم په صدق و په صفا
لاس که پورته په دعا
شپه او ورځ مې که دوا
دعا غواړي له هر چا
خو ښکل نه کړم لبان ستا

هسې نه دی رنځ زما
چې شفا يې شي په دا
***
خوب مې نشته دی کړمن يم
آه فرياد کوم دردمن يم
په سودا د عشق سودمن يم
يا مجنون يم يا کوهکن يم
په جمال يې چې مين يم
له خپل ياره روح او تن يم
په وطن کې بې وطن يم
که دا نه وي دروغژن يم
لکه مياشت په مرد وزن يم
ستا په عشق انګشت نما
***
زړه مې چوي د يار له غمه
دود مې درومي له قلمه
دوه مې سترګې دي پر غمه
غم زياتيږي دم تر دمه
را پيدا شي غم له غمه
قدم ږدم په غره په سمه
دلربا خوبنه خرمه
زه په دا هومره ماتمه
چې جدا شوم له عالمه
سر مې ونيو په صحرا
***
هميشه شورو غوغا کړم
د وريځ په دود ژړا کړم
نه يو ځله په بيا بيا کړم

د غمونو دې سودا کړم
همېشه درته دعا کړم
یادپه شپه و په ورځ ستا کړم
دا چې دیرې زه بلا کړم
د وصال په تمنا کړم
لکه ستا مینې رسواکړم
مه شه بل هسې رسوا

***

چې دې باد د کوڅې راشي
پرې غنچه مې د زړه وا شي
چې په کېنلیو مبتلا شي
شپه و ورځ په واویلا شي
په وګړي کې رسوا شي
ملامت پرې د هر چا شي
چې حاصل یې مدعا شي
غم یې هاله انتها شي
معزالله چې په ژړا شي
ستا پرې پورې شي خندا.(۳۲)

# ۱۴- ترجیع بند:

دا هغه نظم دی چې لومړی څو بیتونه وویل شي بیا وروسته یو مقفی بیت ورلوېږي او په دې ډول یو بند جوړوي، دغه راز بیا بل بند پیلیږي او بیا وروسته همدا مقفی بیت تکراریږي. په ترجیع بند کې د هر بند لومړی بیت مقفی وي لکه د غزل په شان او د بل هر بیت لومړی مسره یې بې قافیه وي او دویمه یې قافیه لري او د مطلعې قافیه تعقیبوي. د بندونو د بیتونو شمېر یې سره مساوي وي. ټولې مسرې یو متحد وزن تعقیبوي. په ترجیع بند کې هم ردیف اختیاري دی. ځینې بندونه کېدای شي ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري. هندسي جوړښت یې داسې دی:

=a____________________________

=a____________________________

____________________________

=a____________________________

____________________________

=a____________________________

____________________________

=a____________________________

____________________________

=a____________________________

____________________________

=a____________________________

=b____________________________

=b____________________________

c____________________________

c____________________________

____________________________

c________________________________

________________________________

c________________________________

________________________________

c________________________________

________________________________

c________________________________

________________________________

c________________________________

=b________________________________

=b________________________________

د ترجیع بند یوه بېلگه داده:

ستا پر مخ پر تورو زلفو زه شیدا یم
صبح و شام په آه فغان په واویلا یم
په فراق کې دې تل خورم د ځیگر وینې
صبر و توان مې بې تا نشته مبتلا یم
نن فلك راباندې تېغ د جور وکیښ
له سرو وینو ډك لړمون لکه حنایم
رقیبان راسره جنگ و جدل کاندي
په دربار کې دې د سپیو مدعا یم
غزاله غوندې وحشي را څخه مه شه
زه صیاد دې د دیدن په تمنا یم
که شل کاله دې مانې وي له مایاره
بېگانه مې هنوز مه گڼه اشنا یم
له اشنا مه کړه مانې بې وفایي ده
چې سیځې مین بې اوره جدایي ده
***

غمازان چې روغې چارې کړي ویجاړې

خوار عاشق به څرنګ ستاپه وصل وياړي
چې احـوال د فـراقـت پر ژبه راوړم
هـغـه دم مې وچوې په خوله کې لاړې
د لالــه پــه دود لـه عمره ځګرخون یم
پــه ګـوګل کې مې تل ويني دي ولاړې
يـا شبنم دی چې اوريږي په چمن کې
يـا بلـبل دی د سحـر پر ګلو ژاړې
ګرد غبار دې د کوڅې یم ولې دريغه
خيـال د وصـل دې لمن راټخه نغاړې
کــه هر څو د تاماني دي نن پخلا شه
دل سوځـته اشنـا دې راغی عذر غواړې
لــه اشــنـا مه کړه ماني بې وفايي ده
چــې سيخې مين بې اوره جدايي ده
***

راشه راشــه ای زمــا د زړه مـقـصوده
مــا غريب کړه په وصال سره خوشنوده
يو ديدن دې په سر غواړم که مينده شي
لاس پــر سر یم پر دنيا له بله سوده
د وصــال قدر له ما زده چې مشتاق یم
د ايــاز لــه قــدره چا زده بې محموده
لــه مــاتـمه سيـه پوش لکه سکاره یم
تــر لېمه مې اوښې ځي د زړه له دوده
لـکـه زه یم تل دا ستا په درد و غم کې
بل څوک مه شه هسې شان په غم الوده
پــه مــانــې مــانــې پر څه زيبا نګاره
پـير محـمد غوندې اشنا دې کړ نابوده
لــه اشــنـا مــه کړه ماني بې وفايي ده
چــې سيـخــې مين بې اوره جدايي ده(۳۳)

# ۱۵- ذوالقافیتین ترکیب بند:

په دې ډول نظم کې څو مقفی مسرې سره یو بند جوړوي بیا وروسته یو بل مقفی بیت ور لوېږي چې د لومړي بند له قافیو سره یې قافیې یو شان نه وي. وروسته بیا نور بندونه راځي او د هر بند مسرې یې په خپل منځ کې هم قافیه وي او د بل بند له قافیو سره توپیر لري او هم د بل هر بند په پای کې خانته بېل بېل مقفی بیتونه راځي. د بندونو د مسرو شمېر یې سره مساوي او یو متحد وزن تعقیبوي. د بیتونو شمېر او هم د بندو شمېر ټاکلی نه دی خو ټول بندونه د مسرو او څپو د شمېر له مخې سره برابر وي.

ردیف په کې اختیاري دی ځینې بندونه کېدای شي ردیف ولري او ځینې یې ونه لري. دلته به د حنان بارکزي یو ترکیب بند وړاندې کړو. د یاد ور ده چې د حنان بارکزي په دیوان کې دا ترکیب بند د (ترجیع بند) په نوم راغلی دی. خو په نورو ځایونو او دیوانونو لکه د خوشال بابا په ارمغان کې دې ډول نظم ته ذوالقافیتین ترکیب ویل شویدی. له ترجیع بند څخه یې توپیر دا دی چې په ترکیب بند کې له هر بند څخه وروسته راتلونکی مقفی بیت بدلون مومي خو په ترجیع بند کې بیا دا مقفی بیت له هر بند څخه وروسته یو شان تکرارېږي. هندسي جوړښت یې دادی:

- حنان بارکزي د ترکیب بند شکل:

a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________
b______________________________
b______________________________

c________________
c________________
c________________
c________________
c________________
c________________
=d________________
=d________________

او نور بندونه

د يادوني وړ ده چې د ترکيب بند بل شکل هم شته. د خوشال په ارمغان کې داسې ترکيب بند هم شته چې د هر بند ټولې مسرې يې مقفي نه وي، داسې وي لکه يو غزل چې يو بند جوړ کړي يانې له لومړي بيت پرته د هر بيت لومړۍ مسره له قافيې ازاده وي. کله چې بند پوره کېږي بيا يو ځانګړی او بېل مقفی بيت ور لوېږي. د حنان بارکزي ترکيب بند:

يــار مــې ولاړ شو په سفر له دې وطنه
کــه ارواح و کــوچ يــې وکــړ لــه بدنه
کــه بلــبل پــه انــدوه والوت له ګلشنه
کــه وروســتــی دم و د مــړي لــه دهنه
چــا بــی کــړې وي د سوي زړه پوښتنه
چــا بې ايښې وي مــلــهــم پر زړه دننه
دروغــجــن يمــه پــه مينه کې هر ګوره
اشــنــا ولاړ شــو زه ونــه وتــم له کوره
***
چــې خــبر يــې د تلــو وشــو نــاګمان
لــکــه تنــدر پــر چــا پــريوزي له اسمان
چــې يــوسـف مــې شو ملګری د کاروان
شــو يــعـقوب زمــا د زړه پســې پريشان
پــه ارمــان ارمــان بــــه ژاړم له هجران
د ژونــــدون طــمــع مې وخته له ځان

چې ترې پاتې شوم په دا پېغور کنده يم
سترګې نه لرم په سر کې شرمنده يم
***

ورسره به څوک پر لارې وي ملګرې
چې ويساه به يې په نه شي نژدې لرې
له ستريا به يې زړه نه غوارې خبرې
له ناکامه تر خولې تويې که شکرې
د سرو لبو لعل به پرولي په کودرې
اړوي به باندې تل د غمو سرې
عاشق نه يم اوس رښتيا شوه دا خبره
چې پرهر درباندې ژارم بې اثره
***

خوب به نه ورځي مانده به ترحد تېر وي
خوشحالي هوا هوس به ځنې هېر وي
سپين رخسار به يې له فکره په بل پېروي
له ستريا به نيشکر ورته کندهېر وي
په ديدن به يې درې دوه ملګري سېر وي
پر هر ځای به لکه روي پر چارپېر وي
چې ترې پاتې شوم په کومو سترګو ګورم
پوزه نه لرم په درست جهان کې ښورم
***

دی روان شو زه پر کور په دا حيران يم
چې نه مړ شوم نه مجنون سرپه بيان يم
نه اسيا رنګه له غمه سرګردان يم
ملامت د هر هندو د مسلمان يم
دی پخوا را پوهېده چې دو زبان يم
رحمتونه دې د ده پر زيرکی وي

لعنتونه دې زما پر خیره کې وي[1]

***

که مې مینه وای ربنتیا سوی په اور وای
په نغرې کې به د هجر لکه سکور وای
پښې مې یبلې کالې خیرې سر سرتوروای
په اندوه سره مې ترك ددنیا کور وای
له دې غمه مې تر اوسه سر په گور وای
ښایې داچې مخ مې توراوپر خره سوروای
صد رحمت دې وي د ده پر دانایی
صد لعنت دې وي زما پر اشنایی

***

یار مې ولاړ شو په سفر پسې زهیر یم
له دې غمه تل اخته د ځان په ویر یم
ریشخندی د هر صغیر د هر کبیر یم
چې په غم لا د قلیل و د کثیر یم
زخمي کړی ښېلتانه د غم په تیر یم
همیشه د دغې چارې په تدبیر یم
چې اجل مې عذر وکه په عالم کې
گنه دېر بې آبه پاتې شوم په غم کې

***

په خپل فضل خواست قبول زماغریب کړې
د وصال ښادي مې یو وار په نصیب کړې
تللي یار راسره وصل عنقریب کړې
مشرف په دغه گل دا عندلیب کړې
د هجران ناسور مې روغ په دا طبیب کړې
خوا په خوا را سره گرم خپل حبیب کړې

---

[1] د نقل پر وخت یوه مسره پاتې شوې ده.

په کـرم سـره د خــوږو زړو دوا يې
چې لار ورکـه کړي هغه پر لارې بيايې
***
وســيلـه مــې کـړې مجاز او حقيقت ته
خــامــوشـي مې کاميابي کړې معرفت ته
مشك مې ورك کړي له خاطره طريقت ته
را پــه غاړه کړې زنځير ستا و قربت ته
کـړې طامع مې ستا د وصل و شربت ته
بـې پوښتنـې مې لاهو کړې و جنت ته
غير خيال مې کړه له زړه څخه جارو ته
دغـه زهـر مـې کـره ستوني کې دارو ته
***
د سـکوت په تار مې څيرې زړه رفو کړې
رو بـرو مــې آئـيـنـه د خـپـل زانو کړې
صـبـر را د نـو خـطـانو لـه جادو کړې
فـسـادونـه مــې له زړه څخه جارو کړې
بــې ويـلـو مــې پـوره هــره ارزو کـړې
مـا حـنـان د بـيم په اوبو کې لاهو کړې
کـه مــې چـيرې يــې بـللى له اخلاصه
په کـرم مې کړه له غشو سينه خلاصه.(٣٤)

## ۱٦- ټول قافيز فورم:

دا هغه ډول فورم دی چې هره مسره يې قافيه لري او ټولې مسرې يې يوه قافيه تعقيبوي. رديف په کې اختياري دی خو که په لومړۍ مسره کې تر قافيې وروسته راوړل شي، نو په همدې بڼه په نورو مسرو کې هم راځي. د هرې مسرې د څپو شمېر له بلې سره مساوي وي. او يو ټاکلی وزن تعقيبوي، د مسرو شمېر يې ټاکلی نه دی، دا ډول شعري فورم د دود عربي فورمونو له بنې سره توپير لري. هندسي شکل يې دا دی:

a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________
a________________________

### يادګارونه يادګارونه

مـــا درتـــه لـيـکلي وای شعرونه او شعرونه
تـــا زلـفـو کـې ايـښـي وای ګلونه او ګلونه
ماپه وچو شونډودرنه کړي وای ـــــ ښسوالونه
تـــابـه زړه را ايښي وای زخمونه او زخمونه

ما ژوند ته نیولي وای دارونه او دارونه
ستاشوندوخندا کړای غورځنگونه، غورځنگونه
زړه کې زمابل وای سره اوږونه، سره اورونه
ستا ژوندون ډیوې وای څراغونه څراغونه
دغسې وای هیلې او همداسې ارمانونه
ما ورته ژړلی تا خندلی ولونه، ولونه
حسن به د تا و داستانونه، داستانونه
ژوند به ټول زما و یادگارونه یادگارونه.(۳۵)

## د ټول قافیز دویم ډول:

په پښتو ژبه کې د دې ډول فورمونو تر څنګ یو بل فورم هم شته چې د هر بیت لومړۍ مسره یې د بل بیت له لومړۍ مسرې سره په قافیه کې یو شان وي او د دویمو مسرو قافیه یې په خپل منځ کې سره یو شان وي، د غزل د سر لومړی بیت یې مقفی نه وي. هره مسره یې خانته، خانته قافیه لري. یانې دا چې د هر بیت لومړۍ مسره له لومړۍ او دویمه یې له دویمې سره په قافیه کې یوشان وي او ردیفونه یې هم همدا شان وي. هندسي جوړښت یې په دې ډول دی:

=a____________________________
=b____________________________
=a____________________________
=b____________________________
=a____________________________
=b____________________________
=a____________________________
=b____________________________
=a____________________________
=b____________________________

دلته به د دې ډول فورم يوه بېلګه وړاندې شي:

## له ستورونه خالونه:

يـو ځل مې د زړګي په وران محل که ګذر وکړې
قـدم تـه دې جـانانه د لمدو سترګو ګيدۍ ږدم
وعـده را سـره نـن کـه د ماښام په ګودر وکړې
لـه ستورونه خالونه درته تيک به د سپوږمۍ ږدم
کـوچـۍ ليـلا که کلي ته مو بيا ته سفر وکړې
دشپو په لويه دښته کې د لمر سپينه کېږدۍ ږدم
د نـاز پيغلـې وړمې که پېښنه زما په سهر وکړې
تـالو کې د کمڅو دې د پسرلي تاندې غوټۍ ږدم
پـه بـرنـدو پښـتنو دې که ديخواته نظر وکړې
د غـره وربښمينو څنو نه پر سر لويه پګړۍ ږدم.(٣٦)

# دويم څپرکی

## پښتو ازاد شعر

په پښتو شاعرۍ کې د ازاد شعر څو ډولونه تر سترګو کېږي. په دې مانا چې پښتو بشپړ ازاد شعر تر څو پړاوونو وروسته دې شکل ته رسېدلی دی. دلته به د ازاد شعر څو بېلګو ته اشاره وکړو.

۱- هغه ډول ازاد شعر چې د دوديزو شعري فورمونو په چوکاټ کې نه وي راغلي، په شکلي ډول په کې يو څه بدلون راغلی وي. ځينې مسرې يې له قافيې ازادې، لنډې يا اوږدې وي، په نورو اکثرو مسرو کې قافيه راغلې وي. خو دا قافيه په مسرو يا بيتونو کې يو شان نه وي، څو څو مسرې يا څو بيتونه په خپل منځ کې مشترکه قافيه لري، بيا بېلې مسرې ورپسې لوېږي او په دې ډول يو بند جوړوي. په دې ډول نظم کې اکثره مسرې تقريبا يو متحد وزن تعقيب وي. ياني له ځينو وړو مسرو پرته د نورو اکثرو مسرو د څپو شمېر سره برابر وي. په دې ډول فورم کې د ځينو بندونو د مسرو له قافيې وروسته کېدای شي رديفونه راغلي وي او ځينې هم کېدای شي هېڅ رديفونه ونه لري.

په پښتو ژبه کې ټاکلي شمېر نظمونه او شعرونه په همدې او يا دې ته ورته فورم کې ويل شويدي. د نيمه ازاد شعر دا فورم يا ډول عام نه دی بلکې د کاروني ساحه يې خانګړې او خاصه ده، دلته به د بېلګې په توګه د اسحق ننګيال د شعر يوه بېلګه راوړو:

ښکاري ته:

ای ښکاري اشنا! درته سلام کوم
پرېږده چې دا ښکلې مرغۍ والوزي
لاړې شي جوړه جوړه ګلونه شي
ښکلې شي ښايسته شي اميلونه شي

واخلي په وزرونو کې تنکي بچي
وموښي سينو کې ګلالي بچي
سپينې سرې مښوکې زرکني بچي
پام کوه!
پام کوه ماشې له ګوتې مه ورو‌ړه!

ای ښکاري اشنا! درته سلام کوم
پرېږده چې دا شنو جلګو کې وخغلي
پېغلې د هوسيو د دامان په لور
واړوي پيکي د شنه اسمان په لور
وخاندي راتاوې شي مستي وکړي
ورغړي نخرې وکړي خوښي وکړي
شپو د پېغلتوب ته خوشحالي وکړي
پام کوه!
پام کوه ماشې له ګوتې مه وروړه!

ای ښکاري اشنا! درته سلام کوم
پرېږده د غونچو په لمن پرېوځي
زموږ د کلي باغ کې د سپرلي بلبل
زموږ د خمارونو شرابي بلبل
پرېږده چې په سرو مښوکو وبولي
زموږ د بام له پاسه د سپرلو سرود
ښې ته د غوټيو د ښکالو سرود
ځمکې ته د وريځو بارانو سرود
پام کوه!
پام کوه ماشې له ګوتې مه وروړه! (۳۷)

د دې ډول شعري فورم د هندسي جوړښت انځور امکان لري ځکه چې د مسرو شمېر او د بندونو شمېر يې نسبتا ټاکلی او څرګند دی. د دې فورم هندسي جوړښت داسې ترسيمېدای شي:

۲- د ازاد شعر بل ډول دا دی چې یوازې له مسرو څخه قافیه لرې شوې وي، یو متحد وزن تعقیبوي، یانې د یو قراردادي وزن لرونکی وي. د مسرو د څپو شمېر یې سره مساوي وي، خو یوه ټاکلې موضوع تعقیبوي. خینې پښتانه ادب پوهان له هغې جملې نه پوهاند ډاکټر مجاور احمد زیار دې ډول شعر (نظم) ته (موندی)(۳۸) شعر (نظم) وايي. دا هم د بشپړ ازاد شعر په لور یو ګام دی. شاعر دلته د قافیې او ردیف له باره خان ژغورلی دی خو بیا هم د قراردادي وزن په جیل کې بنکېل دی او پوره لا ازاد نه دی، خو له غزلو او قافیه والو شعرونو سره یې توپیر دا دی چې دلته یوه ټاکلې موضوع تعقیبېږي. د شعر دوه مسرې کومه خپلواکه او مستقله مانا نه شي خندلی. د مسرو شمېر یې هم ټاکلی نه دی.

د بنکلا لمبې:
جوړ زما د نظر سیوری
ستا په دواړو اننګو کې
دا چې ناځي راته وايي
په لمبو کې د بنکلا دې
د الفت د دوك په ګوتو
اړولم راړولم.
ستا له پامه چې یاغي شوم
د کړو وروخو په ول مې
د ارام زړګي کوډله
د مابنام د اوبنکو تیل کې
د کباب زړګي له تاوه
په امید د ژوند لاهو کړه.(۳۹)
دلته به د دې شعر هندسي جوړښت یوه بېلګه راوړو:

۳- ازاده منظومه: د ازاد شعر یو بل ډول ازاده منظومه ده چې یوه اوږده موضوع او پېښنه انځوروي. دا فورم داستاني بڼه لري په پېښنه کې نورې پېښې هم انځوروي په دې ډول فورم کې قافیه او ردیف موجود نه وي، خو کله کله کېدای شي د خوند لپاره یو نیم خای په کې قافیه او ردیف راشي. په دې فورم کې د مسرو د څپو شمېر سره یو شان نه وي. په پښتو کې دا ډول منظومې ډېرې دي. د استاد بهاوالدین مجروح خانخاني بنامار، نا اشنا سندرې هم دې فورم ته ورته دي، د پیر محمد کاروان او خینو نورو شاعرانو هم دا ډول منظومې شته. دلته به له دې ډول ازادو منظومو څخه د څوان شاعر عبد الغفور لېوال د منظومو یوه بېلګه وړاندې کړو.

بلاد

کبرګن(۱) کبر وکړ

(۱) کبرګل یو ډول غرنی ګل دی او د سرو سیمو په لوړو غرونو کې توکېږي، د سترګو په شان بڼه لري او جوله یې د غاتول ده، ډېر ښکلی دی سر یې ښکته څړېږي او اوښکې ورڅخه تویېږي، د دغه ګل په هکله فوکلوریکې کیسې هم وجود لري.

او خدای ج؟ له باغ څخه تبعید کړ اوس په غره کې اوسي
باد راته تشه لپه بیا نیولې
ستا مینه وړو او په تمه اننګو ته زما له شونډو نه سلام غواړي
باد زما پر مینه مین نه دی

ستا لیدو ته درځي

باد د پلمو تږی دی
باد ډېر هوښیار دی په کیسو کې راته خوب راولي
غواړي په خوب کې زما له شونډو نه سلام غلا کړي
او باد کیسه کوي چې:
هلته جنت کې کبر ګل پر یوې ښکلې ښاپیرۍ مین و
ګل ښاپیرۍ ته د هغې د ښایستونو د ستاینو کتاب
په څومره مینه د لېمو پر ژبه ختم کړلو
خو د هغې په ښکلو سترګو کې یې تکی د باور ونه لید
د ښاپیرۍ ایمان پر خپل حسن هنداره غوښته
ګل د باغچې پر سینه خوب پرېښوده
ګل لېونی شو د غره کاڼو ته یې غېږ پرانیسته
چې ښاپیرۍ ور نه خپل حسن ته هنداره غوښته
خو ګل جنت کې د وږمو پر ښیښه کبر وکړ
چې: زه مې ښکلې ته غزلو نه ائینه جوړوم

***

نو ای د باغ شهزاده!
ولاړ شه د غرونو د کوڅو ملنګ شه
تر هغې ورځې چې شاعر شې
تر څو مینه زده کړې
او ګل همداسې وکړل
چې لا تر اوسه د ډبرو د اوښانو په پیکي کې زانګي
چې لا تر اوسه یې په زړنو کې غزل لټوي

او لا د اوښکو په تار
د لمر د وړانګو پر ليك
د خپل شهيد ګرځنده سيوري په نوم
پر خپلو پانو شنه توغونه ليکي
خو ګل لا نه دی شاعر
باد مې د کلي پر کوڅو پيښ شو
باد لکه سترې بقال
د خپل شاعر زړګي بوختې راته پرانيستې
د کيسو په بيه ما څخه سلام غواړي

۲

يو ببرسري د پښو پر شونډو ښکل کړې
د ډبرو د زخمي اوږو سپيرې شونډې
او هلته پاس يې د غره تور کاکل کې وليد د سپرلي شهزاده
څه دي کوچيه ګله؟
ولې دې خپل څيرې ګرېوان کې اشرپی د اوښکو
تر خپل قدم لاندې د ورك قسمت د کرښو برج ته
لکه د پښت بابا پر پټه خزانه شيندې
او تش بانه دې ورته نږغ لکه نږزې نيولي
مګر ته هم لکه مومند بابا د خپل مراد د مخ جلوه خپل زړه کې ګورې
بس ببر سريه څوك يې!
او تاته چا ده درښودلې د ګلونو ژبه
زما د زړه له راز نه چا خبر کړې؟
ماته شاعر ښکاره شوې
زه دې د سترګو د ايلبند له کومې پيغلې کوچۍ
د خپل ارمان پګړۍ ته ګل وغواړم
زه مې د مينې د ښکلا قامت ته څه شي نه اينه جوړه کړم او ببر سري
ورته

لار د مینتوب وښوده...

***

۳

باد مې د عشق په غنم لو راغی
لکه لوګر مې د زړه للمو نه ستړی، ستړی سلام ریبي
اوسره غرمه کې زمادروح د شنه توت سیوري ته د بادلوګرکیسو ستړی کړ
چې د شنه باغ شهزاده
د تورو غرونو ملنګ
ها لېونی ګل خپل زلمی زړګی کوچی کړ
چې د مینې له بادونو سره کډه وکړي
او د شپیلۍ کوډګر او مست غږ یې بیا
د ښاپیرۍ پر تور وربل وناخي
څو له خپل شنه تخته راپاڅي لالهانده شي کوچی شي
او ګودر ووینې
څو شنه ویاله کې د خپل حسن انځور وپېژني
تر څو په مینه پوه شي
څو یې چې مینه کړي د تورو غرونو جبل کې بندي
او څو د ګل له شنې اروا سره شي غاړه غړۍ
شپېلۍ پر شوندو یو کوچي د باران لار وهله
او ملایکو د اسمان پر دروازو ولیکل:
"د ګل مین زړګی پردېس شو د اسمان کلي ته"

***

باد مې د اوښکو چم ته بیا راغلی
زما پر ستو مانه ښو کانی تړي
باد شو د مینې د سلام د شنو مرغیو ښکاري
باد د خوب باغ کې راته دام د کیسو بیا ایښی دی

٤

وخت د پېرېو غمي وپېيل د غرونو هار کې
او د زلمي کوچې کوډګرې شپېلۍ
د ښاپېرۍ د شنې اروا په غوټۍ
په څومره مسته مینه
د لېونتوب شنې پرخې پړ ولې
او ښاپیرۍ یې لالهاند کړه کوچۍ شوه پر ګودر پېښنه شوه
یوه مینه کوچۍ
لکه ګل څانګه کې شبنم او لکه اوښکه ښکلې
لکه پر شنه خنګله خوره وره د وریځو لړۍ
لکه د غره هسکه دره کې رنګه بنګه د باران ګردله
کوچۍ دنیا ته راغله.
خو د ګل زړه بېرته راونه ګرځېد
هو د زلمي کوچې خبر رانه غې
لکه د وریځو له خاطر څخه هېر شوی د باران څاڅکی
لکه تاریخ څخه په جبر ویستل شوی اتل
لکه سرحد د نادرې او رد سیخونو او پښتون سیدال د سترګو تر منځ
لکه میوند کې د ملالې د لنډۍ انګازې
لکه زما مینې نه وتلی جنون
لکه ستا سترګو څخه تللی غرور
کوچۍ دنیا ته راغله
خو ګل هماغسې بې زړه پاتې شو.

***

باد شو لېمو کې د کیسو انځورګر
بیا مې د خوب او ویښتابه پر پوله ناست دی لکه ستړی مابنام
زما د مستې بېخودۍ لار کې یې ایښی نظر
څو مې له عقل څخه لرې د عشق کلي نه سلام غلا کړي
او ښایي باد دی چې په خوب کې مې اروا سره
د عرش مېلمه شو.

۵

او زما د خوب د پانو سترګې لا کوچې پېژني
ها د شپیلیو د کوډګرو سندریزو میو مست ساقي
هغه اروا د کبر ګل هغه د عشق د بېخودیو پاچا
ها پر ښکلا د سپین باور د اینو سوداګر
ها له مجاز نه حقیقت پورې د تږیو کاروانونو څاروان
ها د سهار په اوږو ناست هغه د ورځې دلیل
ها د ایمان په کروندو کې د شنې مینې بزګر
ها د سپرلي عیسی چې زما د خوب صلیب
یې پر اوږو بار دی
ها د شاعر د سترګو شپو کې تر معراجه تللی
ها را بېل شوی له اسمانه چې په خدای مین شو
ها له خپل آر نه د بېلتون له چیغو جوړ انځور
د ښاپیری د مینې لاس نه د خدای مینې یوور
او د جنت مېلمه نه څان هېر شو
چې څنګه پانې پانې ژاړي د اسمان لارو ته
چې یې ښکالو ته لا د غره په کانو سیوری کوي.
***
ما ته د خوب شهزادګی غېږ پرانیستې
زه یې سینه باندې د غره د وږمو مینه کوم
دا راته سترګو کې کیسې د ښاپیریو کوي:

٦

د ښاپیریو له تبر نه یوه پېغله کوچې
چې یې ورك کړی د خپل عشق د اوږد مزله ملګری
لکه د ورېځو د کوڅو بوربوکې
لکه د ګډو ستړي فصل کې
له خپلې خېلخانې نه پاتې شوې لالهانده زانه

راغله د غرونو د کوځو لیلا شنوه
وخت د پېریو له باران نه لپې ډکې کړلې
پر ګل د ډېرو کوچانیو کمیسونو د لمنو سیوري ورپېدل
ګل یو ځل نه څو ځلې هسك شو پر کمڅو د پېغلو ونځېده
خو نه ګلونو ښاپیرۍ پېژنده
نه ښاپېرۍ ګلونه وپېژندل
لکه رانده غاټول نه ورك د پسرلیو موسم
لکه له ترېږي چنار هېره د ګودر غاړه
لکه شېبه د بېلتانه کې مروره سلګۍ
لکه بېدیا کې له چینې نه سیند ته پټه لاره
لکه زموږ د هرې ورځې د سپېدو له شوندو ورکه موسکا
ورکه همداسې ورکه
خو ګل لا خپل غزل ساتلی د کوچۍ قامت ته
مینځې یې هره ورځ په سپینو اوښکو
او ښاپیرۍ لا په دې نه پوهېږي.
***

مانه د خوب پرښتې والوتلې
لا مې د سترګو د سپېرو مینو نغریو کې د خوب
د سبایي اورونه بل دي ما ترې کډه کړې
او زه په برندو د ګل سیورۍ وینم
چې لالهانده دی د خپلې مینې لارې څارې.

۷

او دا دی خپل یوازیتوب مې لاس نیولی ځم د غرو څوکو ته
هلته به ګل ته د کوچۍ د کوچ کیسې وکړم
زما دا اروا په ماته چیغه کې به ګل ووینې
چې زړه یې څنګه د اسمان کوربه شو
چې ښاپیرۍ وریسې څنګه لالهاند شوه، کوچۍ شوه اوس په غرونو ګرځي

څو چې د ښکلي ګل پر هرې لېونی پاڼې
زما د خوب يو تاج محل جوړ شي
زه به کوچی ته کبر ګل وښيم
څومې غزل شي د رښتيا هنداره
خوب مې ساقي شي د راز جام به د کوچی تږې خاطر ته ورکړي
څو يې اروا د باد په پټو کيسو وپوهېږي
زه به وصلت شم ښاپيری او ګل به بيرته د جنت مېلمه کړم
هلته به عشقه ستا دربار ته په غرور درځم
هلته به مينې ستا د ښکلي چم شاعر شم
لېونی به شم څو مينه زده کړم
دا دی کوچی درغلم!
او دا دی واوره ګله!
اه خدايه! دا څه وينم
باد مې سلام غلا کړی
باد رانه ژبه د ګلونو وړې.(٤٠)

د ازادو منظومو هندسي جوړښت ټاکلی نه دی. سره له دې چې ازادې منظومې سره څه ناڅه ورته ښه لري خو بيا هم د يوې او بلې تر منځ د مسرو د شمېر د بندونو د څومره والي د مسرو د اوږدولي او لنډوالي له پلوه توپيرونه موجود دي. نو څنګه لکه د غزل، لندی ، څلوريزې. او يا هم قطعې په شان د ټولو لپاره يوه ټاکلې هندسي ښه نشته البته کېدای شي هره ازاده منظومه په جدا او بېله توګه ترسيم شي او د همغې لاسلرلې منظومې شکل انځور شي.

٤- بشپړ ازاد شعر: بشپړ ازاد شعر هغه دی چې په هغه کې يوه ټاکلې موضوع انځورېږي، د مسرو شمېر او اوږدوالی يې مقيد او ثابت نه دی. قافيه او رديف په کې مطرح نه دي، البته کله يو نيم ځای د خوند د زياتون لپاره راځي خو وزن تر اوسه پورې د ازاد شعر په اساسي توکو کې راځي. لکه څنګه چې د ازاد شعر له نامه څخه ښکاري پر يوه ټاکلي او ثابت شکل مقيد

نه دی؛ نو څکه د ټولو ازادو شعرونو لپاره یو ټاکلی ثابت او کوټلی هندسي شکل نشته چې د ټولو ازادو شعرونو رغښت دې افاده کړي. البته په ځانګړي ډول د هر ازاد شعر د ځانګړي هندسي شکل د ترسیم امکان شته. یو ځل بیا یادونه کېږي چې ازاد شعر د څپو او د مسرو د شمېر او د مسرو د اوږدوالي او لنډوالي له مخې ازاد دی خو تر اوسه لا د وزن له بند نه، نه دی ازاد شوی او هم هغه څپیز خجیز جوړښت چې د پښتو شاعرۍ پر نورو شعري فورمونو تطبیقېږي پر پښتو ازاد شعر هم د تطبیق وړ دی. دلته به د ازاد شعر څو بېلګې وړاندې شي:

د مور لیك ته

لیك مې د مور نه دی زده
چا ته بی ویلي وي
چا ته بی زاري کړي
چې راشه زما ګران زوی ته
ولیکه!
زه روغه یم ته څنګه یې!
یاد خو به دې وي!
چې یوه شنه پانه
زموږ د کوړ له ونې نه
په زوره چا شکولې وه
ژړل به دې
تاتې - تاتې دې ډېر وکړه
ویده شولې
نو ګرانه مینه کیر کې مې
راولیکه!
زه روغه یم ته څنګه یې! (٤١)

هندسي جوړښت یې د مسرو د څومره والي، اوږدوالي، او لنډوالي له مخې په دې ډول دی:

________________________________

________________________________

________________________________

________________________________

______________

________________________________________

_________________

_________________________

________________________________

________________________________

______________

________________________________

______________

________________________________

______________

________________________________

بله بېلګه:

**کيله**

دا منم چې پرښته يې
دشنه سيوري په رڼا کې
لويه شوې ښايسته يې

مګر ګوره:
ما دې څانګو ته
لا لاس در وړی نه و
تا د سرو منو د غله په نوم رسوا کړم!!!(٤٢)

هندسي جوړښت يې دا دی:

=a________________________________

=a

د ازاد شعر بله بېلګه:

**کب**

بېچاره کب!

هغه تور نه پېژني

او نه بی وروسته له دې وپېژني

څکه چې هر څلې یې تور ولیده

بیا یې د سترګو کنګل

د اوبو مخ و نه لید.(٤٣)

# دریيم ځپرکی

# د پښتو اولسي شاعرۍ فورمونه

## ۱- لنډۍ:

لنډۍ په پښتو شاعرۍ کې تر ټولو کوچنی شعري فورم دی خو د مانا د خواك او ليږد له پلوه نه یوازې په پښتو شاعرۍ بلکې په نړیواله شاعرۍ کې یې ساری لیدل شوی نه دی.

د لنډۍ کمال په دې کې دی چې مجموعاً په ۲۲ څپو یا دوومسرو کې دروند مانیز بار او ښکلا لیږدوي. د لنډۍ لومړۍ مسره ۹ او دویمه ۱۳ څپې لري، لنډۍ قافیه نه لري خو د دویمې مسرې په پای کې یوه اهنګینه کلمه لري چې د لنډۍ ټول اهنګ بشپړوي. هره لنډۍ باید د زور (ه) په واول پایته رسېدلې وي. که چېرې د دویمې مسرې په پای کې دا زور (ه) را نه شي نو اهنګ یې نیمګړی پاتې کېږي. لنډۍ د پښتو ژبې د فونولوژیکي (غږیز) جوړښت تابع ده او د هغې پر بنسټ جوړېږي. په نورو ژبو کې د دې ډول شعر (البته په همدې وزن او اهنګ) څرك لیدل شوی نه دی او نه په ژباړه کې د دې اهنګ ساتل شوی دی.

پر ټولو لنډیو باندې یو قانون د تطبیق وړ دی، یانې دا چې د هرې لنډۍ لومړۍ مسره باید حتمي ۹ او دویمه ۱۳ څپې وي. د هرې لنډۍ د لومړۍ مسرې څلورمه او اتمه څپه او د دویمې مسرې څلورمه اتمه او دولسمه څپه، خجنه وي. لکه:

امانتي مې ګور کې کېږدئ
که یار خبر شي ما به خپل وطن ته وړینه

د دې لنډۍ څپیز - خجیز جوړښت په دې ډول دی:

U - U U U - U U U

U - U U U - U U U - U U U

له مانیز پلوه لنډۍ په بېلابېلو ډولونو وېشل کېدای شي. د پښتني ټولنې د ژوند د ټولو ډګرونو انځورنه په کې کېدای شي او شوې هم ده خو د شکل او جوړښت له مخې لنډۍ همدا یو ټاکلی شکل او قانون لري.

دلته به یو څو لنډۍ د بېلګې په توګه وړاندې کړو:

یوه وعده راسره وکه

چې د صراط په پله به یو ځای سره ځونه

***

ستا به واده زما به مرګ وي

ستا به ډولی زما به کټ خاورو ته وړینه

***

ولې دې بد راسره وکړه

زماهمدغه هیله وه چې یار لرمه

څرنګه چې په لنډیو کې د وروستۍ مسرې وروستی کلمه اهنګینه وي او د وروستۍ څپې اهنګ یې لوړ او تر هغې د مخه څپې اهنګ یې لوېدلی شان وي (⌄—) نو دلته کېدای شي د لنډۍ هندسي جوړښت داسې ترسیم شي:

________________

⌣________________________

## ۲- سروکی (نیمکۍ):

سروکی د پښتو اولسي سندرو یو خانګړی ډول دی چې بېلابېل فورمونه لري. ځینې پښتانه سروکی نیمکۍ بولي او د پکتیا په منګلو کې د پام په نوم یادېږي.

سروکی د پښتو د اولسي سندرو د نورو اصنافو په څېر د پښتون قام د ټولو کړو وړو انځورونه کوي او د خلکو د ملي، اجتماعي او روحي ځانګړنو عکاسي په کې شوې ده.

سروکی معمولاً د لنډیو په واسطه بشپړېږي داسې چې لومړی سروکی ویل کېږي بیا ټیکی (لنډۍ) ور اچول کېږي. له سروکو سره ټولې لنډۍ ویل کېږي خو هغه لنډۍ چې د سروکي له موضوع سره ارتباط ولري خوندورې وي. لنډۍ وار په وار بدلېږي مګر سروکی د هرې لنډۍ په پای کې مکرر راځي.لکه:

خانه راځه دلبره
ډکې لارۍ د جنکو لندن ته ځینه
د جنکو قدر یې کم که
امان الله ته دې خدای لونې ورکوینه
خانه راځه دلبره
ډکې لارۍ د جنکو لندن ته ځینه

سروکی کله یو بیتیز وي یانې دوه مسرې لري چې لومړۍ مسره یې اوږده او دویمه یې لنډه وي او کله یې دوهمه مسره اوږده او لومړۍ یې لنډه وي کله درې مسریز، څلور مسریزاو پینځه مسریز هم وي چې دلته به د هر یوه بېلګه راوړو:

دوه مسریز سروکی چې لنډۍ هم ورسره مله ده:

الا یو غرږ وشو
راغلې مه وای د جبو په میدانونه
د لمندار کمیس میرمنې
الا یو غرږ وشو

اور په لمنې باروې ستي دې کړمه
الا يو غړ وشو.

درې مسريزه سروکي:
پسې ورجلۍ کړه سره لاسونه
لند کړه د تيکی مزي دې
خال به دې وران شي.

څلور مسريز سروکی:
تورې سترګې خماري
درته کړم ناله زاري
د زړه زخم مې کاري
شوم رسوا ستا په ياري

پينځه مسريز سروکی:
بي بي شېرينې
زيړې ګلې
راباندې واچوه
يوه لونګې
جوړه لاسونه

ښاغلی زلمی هېواد مل ليکي: "سروکی بيلا بيل فورمونه لري چې خينې يې ډېر زاړه دي او د اوستايي ګاتونو د (هوخشتاتره) او (اهونار) سره په تول او وزن کې برابر خېږي".(٤٤)

د دې ډول سروکو هندسي رغښت داسې انځورېدای شي. دوه مسريز سروکي لږ تر لږه دغه لاندې بڼې درلودای شي:

a______________________________

a____________

***

a______________________________

a______________________________

دویمه او د ریمه بېلګې یې دادي:

شین کمیس راوړی کمر بند مې دی تر ملا

و غازي امان الله

مین چې شومه په ګل بیو

ستي یې کرمه په سرو لمبو(٤٥)

## د درې مسر یز سروکي شکلونه:

یو ډول یې هغه دي چې د سر لومړی مسره یې له دویمې اوږده وي او دویمه یې تر درېیمې. بل ډول یې دا دی چې د سر لومړی او درېیمه مسره یې د څپو د شمېر له مخې برابرې وي او هم قافیه وي خو دویمه مسره یې قافیه نه لري او هم لنډه وي. شکل یې دا دی:

______________________________

_________________________

____________________

***

a______________________________

_______________

a______________________________

۲ بېلګه یې دا ده:

پورې د جانان کډې بارېږي

زم ورسره خمه

کله مې مین زړګی صبرېږي(٤٦)

څلور مسرییز سروکی:

هغه ډول چې ټولې مسرۍ یې قافیې ولري او د څپو شمېر یې سره مساوي وي. لکه:

a______________________________
a______________________________
a______________________________
a______________________________

بله بېلګه یې دا ده چې ټولې څلور واړه مسرۍ یې ټولې قافیه والې نه وي او هم یې د څپو شمېر سره برابر نه وي، لکه دا سروکی:

ګودر غاړه اجاره
ما بې وروره مه کې
وروړې ما سره جوړه
شرنګ دې د بنګړو(٤٧)

د پورتني سروکي شکل داسې دی:

a ______________________
______________
a ______________________
__________

د پینځه مسریز سروکي یو شکل په دې ډول دی:

______________________
______________
__________________________
__________
______________________

له دې پرته د سروکو نور ډېر ډولونه هم شته لکه هغه سروکي چې د ښځې او نارینه تر منځ د سوال او ځواب په توګه ویل کېږي لکه:

ښځه : جانانه راشه دیدن وکړه
خفه زړګی مې ښه کړه
سبا بېلتون دی

نارينه : ګلې سبا ته به درځمه
تا نه خفه کومه
ښکلی ژوندون دی

بله بېلګه

ښځه : خان د لاور خانه، توره دې لونګی شمله دې لا مزه کوينه.
نارينه : ګلې بي بي ګلې تورې سترګې سره لاسونه لا مزه کوينه.

دغه راز يو شمېر نور ډول ډول سروکي هم شته چې په بېلا بېلو سيمو پورې اړه نيسي، په لنډ ډول هغه د سر محقق ځلمي هيوادمل په وينا د سروکو د فورمونو شمېر خورا زيات دی.

# ۳- کاکړي غاړې (کاکړۍ):

کاکړي غاړې چې کاکړۍ لندۍ یې هم بولي د پښتو اولسي ادبیاتو یو خوږ ډول دی چې راز راز موضوعات (رزم او بزم د پښتنو تولنیز، اقتصادي شرایط، کلتوري پابندي، دیني او عقیدوي خبرې ساده اولسي افکار، ټوکې او ټکالې او د پښتني کلتور بېلا بېل اړخونه، خویونه او رواجونه په خپله لنده تنکه غېږ کې رانغاړي.

کاکړي لندۍ که څه هم له نامه څخه یې له کاکړو سره تړلې معلومېږي مگر د ټولو پښتنو اصیل مال دی او په پښتنو کې داسې کام نه شته چې د دې لنډیو په جوړولو کې یې لږه یا ډېره ونډه نه وي اخیستې. دغه ډول له نورو ټپو څخه یو جلا او بېل شی دی چې لومړی وار کاکړو نښلولي دي او تر ننه به زیات و کم پنځوس زره لندۍ جوړې شوې وي.

کاکړي لندۍ له دوو مسرو څخه جوړې وي چې کله کله یې ددواړو برخوسېلابونه سره برابراوکله کله توپیرسره لري او د دواړو برخو وروستي توري یې سره یو رنګ وي. هغه کاکړي غاړې چې هره مسره یې اته اته سېلابه وي:

ښایستې که ستا رضا ده
ستا د قام بدي پر ماده

هغه غاړې چې یوه مسره یې اته او بله نهه سېلابه وي:
شین خالی نجونې لاښې دي
په لاره خي له خندا شنې دي

هغه غاړې چې یوه مسره یې اوه سېلابه او بله یې اته سېلابه وي.
تر لاس نه ترو ګرۍ
موږ ملنګان یو شین خالۍ

اوه سیلابه غاړې:

د بوټو تنی ترم

د شاکار مهلې ته خم(٤٨)

په عمومي ډول د دې ډول فورم هندسي جوړښت داسې دی:

یو ډول: ____________________a=

____________________a=

بل ډول: ____________________a

____________________a

# ۴- د اتڼ نارې:

د اتڼ نارې لکه له نامه څخه یې چې معلومېږي یوازې په اتڼ کې ویل کېږي په ناستې نه ویل کېږي که څوک یې ووایي هم خوند نه کوي. ښځې هم په ښادیو کې اتڼ کوي او نارینه هم. د نارینه وو د اتڼ نارې ښځې هم په خپل اتڼ کې وایي خو ښځې ځانته بېلې مخصوصې نارې هم لري چې هغه نارینه په خپل اتڼ کې نه وایي. د نارینو د اتڼ نارې پر ډول ډول او بېل بېل وزن د اتڼ چیانو له حرکاتو سره سم ویل کېږي، لکه ورو اتڼ، یو بغله اتڼ، دوه بغله اتڼ، درست اتڼ، د ایشلي اتڼ، د ناستې اتڼ د پروتې اتڼ، د پروتې دوه بغله اتڼ، چپه وراسته اتڼ، غلی اتڼ او...(۴۹)

د دې هر ډول اتڼ له حرکاتو سره سم ناره له خپل وزن څخه اړوي او په نوي وزن یې وایي.

د اتڼ نارې معمولاً درې او څلور مسرې لري. خو هم په درې مسریزه او هم په څلور مسریزه ناره کې د مسرو د څپو شمېر سره مساوي نه وي. په درې مسریزه ناره کې لومړۍ او دریېمه مسره سره هم قافیه یا هم اهنګه وي وروستۍ یادریېمه مسره معمولاً لویه وي او دویمه مسره یې تر ټولو کوچنۍ وي.

چتې چې په پښو دې کړې چوتې

خوانان دې لېوني کړه

زاړه خواران دې وایستل له ګتې

په پورتنې ناره کې (چوتې، ګتې) دقافیې کلمې دي. لومړۍ مسره ۱۰، دویمه مسره، ۷ او دریېمه ۱۱ څپې ده.

واوړئ د هوا مرغانو واوړئ

مساپر مې دورې تللي

مرغانو په وزرو کې یې راوړئ

په دې ناره کې لومړۍ مسره ۱۰، دویمه ۸ او دریېمه ۱۱ څپې ده (واوړئ او راوړئ) یې د قافیې کلمې دي. هندسي جوړښت یې داسې انځورېدای شي:

a________________________

________________

a________________________________

د درې مسریزو نارو بل ډول دا دی چې د قافیې تر څنګ ردیف هم لري لکه:

کمیس مې تر لمنې ګلا ګل دی

د خیال کمیس مې دا دی

چې اورونه لګوي هغه لا بل دی

په دې ناره کې (ګل او بل) د قافیې کلمې دي. (دی، دی) یې ردیف دی. لومړی مسره ۱۱، دویمه ۷ او درېیمه ۱۲ څپې ده. هندسي جوړښت یې داسې دی:

=a________________________

________________

=a________________________________

کله کله په درې مسریزه ناره کې داسې هم پېښېږي چې لومړی او وروستی مسره د څپو شمېر له مخې سره مساوي وي. لکه په دې ناره کې:

هلکه چې سپین موټی دې چاره ده

مابه خولګی درکړه

هلکه خو ریباره دې میره ده

د دې نارې لومړی مسره ۱۱ دویمه ٦ او درېیمه هم ۱۱ څپې ده. هندسي رغښت یې دادی.

=a________________________

________________

=a________________________

د اتڼ نارو بل شکل دا دی چې څلور مسرې ولري د دې هرې مسرې د څپو شمېر له بلې سره مساوي نه وي. لومړی او درېیمه مسره یې نسبتا کوچنۍ او دویمه او څلورمه یې تر هغو دوو نورو لویې وي. معمولا لومړۍ دویمه او څلورمه مسرې یې سره هم قافیه وي. لکه:

دله دله دله

کوتره یم راغلې له کابله

یا به کابل خپل کم
یا به راوړم د کابل ژیړه بلبله

لومړی مسره ٦ دویمه مسره ١١ دریمه ٦ او څلورمه ١٢ څپې ده. (دله، کابله، او بلبله) د قافیې کلمې دي. بله بېلګه:

خانه زموږ خانه
داستا خاني دې خدای نه کي بېرانه
ملکونه دې رعیت کړه
د دښمن کلا دې وکښه د میدانه.

په دې ناره کې لومړی مسره ٦، دویمه ١١، دریمه ٧ او څلورمه ١٢ څپې ده. (خانه، بېرانه او میدانه) یې د قافیې کلمې دي، د لومړی نارې هندسي شکل دا دی. لومړی شکل:

a__________
a________________
__________
a______________________

دویم شکل:

a__________
a________________
__________
a______________________

دویمه بڼه:

د څلور مسریزو نارو بل ډول دا دی چې د قافیې تر څنګ ردیف هم لري. لکه:

څه کم د چا څه کم
پر خپل غولي ولاړه* یم کاته کم
یار که مې نادان دی
د بل پر ښایستو به یې ور نه کم

په پورتنۍ ناره کې لومړۍ مسره ٦، دویمه ١٠، دریمه ٦ او څلورمه یې ١١ څپې ده. (څه، کاته، ورنه) یې د قافیې کلمې دي. (کم، کم) یې

ردیف دی هندسې شکل یې دا دی.

=a________________

=a__________________________

________________

=a__________________________

* ولاړه (دوه څپې).

د څلور مسریزې نارې بله بیلګه دا ده:

پوړنی مې ابې دی

له خیاله مې غبرګ کړی پر تندې دی

مابه اتڼ وکړای

داستا د بابا کلی رخشندې دی(۵۰)

په پوړتنی ناره کې لومړی مسره ۷، دویمه ۱۱، درېیمه ٦ او څلورمه ۱۱ څپې ده. (ابې، تندې، او رخشندې) د قافیې کلمې دې. (دی، دی) ردیف دی.

هندسي رغښت یې داسې راځي:

=a__________________________

=a__________________________

________________

=a__________________________

له پورتني یادو شکلونو پرته د اتڼ په ځینو نارو کې د قافیې او څپو د شمېر په حساب لږ شان بدلون ښکاري خو دېر عام نه دی. د اتڼ د نارو اساسي شکلونه همدا وو چې پورته یې یادونه وشوه.

## ۵- ببولاله:

ببو لاله د پښتو ادب هغه مخصوص شعري فورم یا سندره ده چې د واده په لومړۍ ورځ کله چې د ناوې سر وغوړوي او د واده پر مخصوص تخت یې کېنوي د ورا او د ناوې تر خوا ښځې ګډې ودې شاوخوا سره کېني او ناوې په منځ کې ناسته وي، نو دا ښځې دغه سندرې په ګډه وايي.

کله کله د ببولالې له اصلي متن سره یوه بله مسره هم یو ځای کوي او بیا یې په ترنم کې وايي، دا مسرې ښلابښلې دي چې د خپلې مانا له مخې ببو لاله هم د هغې په نامه یادېږي لکه (دوه دوه تاره اخلي) خورښادي او (ښه رورا) ښېلګې یې دا دي:

دوه دوه تـــاره اخلـــي
ګیســـو ورو وروي ښېلویه
نـــاوکـــی مـــوده نـــاندانه
تـــر غرمې مې یې خندویه

***

خورښادي دې مه سه پاته
خورښادي دې مه سه پاته
خـــورښـــادي مـــو ده
د کمبلـــې ژی یـــې تورې
د کمپلـــې ژی یـــې تورې
خـــور ښـــادي مـــو ده
لالـــي پـــر ننـــك مین دی
خـیـښـې نه باسي سرتورې
خـــور ښـــادي مـــو ده (۱)

***

ښـــه رورا ښادي دې وسه
شـــاه سلامـتـي دې وسه

شــین بادرنګ او بورا وړی
شـنـي بادرنګ او بورا وړی
داسـي زوم مـو دروسـتلی
چـاپه خوب نه دی لیدلی(۵۲)

ببولالي عموما درې مسرې لري. د مسرو د څپو شمېر يې سره مساوي وي، د پښتو اکثره ببو لالې د څپو د شمېر له مخې (اته) څپې وي او دا قانون تقريبا پر ټولو ببولالو تطبيقېږي. کېدای شي د لنډيو په شان د ببولالو وزن هم خانګړی وي. خو پر لنډيو بيا په مطلق ډول يو قانون تطبيقېږي. خو په ببولالو کې يو څه شکلي بدلون شته.

په ببولالو کې قافيه شته. د ببولالي لومړی او درېيمه مسره په خپل منځ کې هم قافيه وي خو دويمه يې له قافيې ازاده وي. ياني داچې:

a______________________________

______________________________

a______________________________

دغه راز ځينې ببولالې له قافيې څه وروسته رديف هم لري چې دا بڼه غوره کوي:

=a______________________________

______________________________

=a______________________________

په ځينو استثنايي حالاتو کې کېدای شي دويمه مسره هم قافيه اختيار کړي او هم کېدای شي د څپو په شمېر کې کومه څپه زياته او ياکمه شي خو د ببولالو عمومي شکل او جوړښت همدا دی چې درې مسرې لري، هره مسره يې اته څپې لري، لومړۍ او دريمه مسره يې هم قافيه وي که دڅپو په شمير کې زياتی او کمښت راشي نو له ورايه يې په وزن کې کمی احساسېږي. د ترنم او موسيقۍ په وخت کې د ببولالو له مسرو سره (ها ببولاله لا له وای) يو ځای کېږي او د شعر کمپوز برابرېږي؛ لکه:

اوښ ولاړ زنـګـون تـړلـی (ها) ببــــولالــه
اوښ ولاړ (وای - وای) زنګـــو تـړلــــی (وای)
تر هغو به يې خلاص نه کم (وای) ببولاله - لاله
څـو زمـا جان (وای وای) نه دی راغلی (وای)(۵۳)

دلته به د ببولالو څو بېلګې وړاندې کړو:

پــر کــور سور زومبك څرېړي
هغه لــور دې سترګې وخوري
چـــې د پـلار په کور نازېږي

د مسرو شمېر يې ۳، د څپو شمېر يې ۸، (څرېړي) او (نازېږي) يې د قافيې کلمې دي. هندسي رغښت يې داسې دی:

a______________________
______________________
a______________________

د همدې شکل بله بېلګه:

پر کور دوه زرغــونه شاله
زمـــا جـــان ورته ولاړ دی
لاس يې نه ورځي د خياله

د ببولالې بل شکل دا دی چې له هماهنګو اهنګينو کلمو يا قافيې وروسته بله کلمه يا رديف هم ولري. دا يې بېلګې دي.

تر بالښت لاندې انار دی
داسې زوم مو دروستلی
چې نامتو د کندهار دی

بله بېلګه:

ناوکی ګوتې د سرو دي
تر دسمال يې راايستلي
چې سکه لېورونه څو دي(٥٤)

په لومړۍ ببولاله کې (انار، کندهار) او په دويمه کې (سرو او څو) د قافيې کملې دي. په لومړۍ کې (دی، دی) او په دويمه کې (دي، دي) رديفونه دي، هندسي بڼه يې داده:

=a______________________
______________________
=a______________________

# ٦- چاربیته:

چاربیته د پښتو ملي شعري فورمونو هغه ډول دی چې هر بند یې له څلور مسرو څخه کم نه وي. زیاتره چاربیتې په ملي موسیقۍ کې خانته په زړه پورې اهنګونه او خوږې نغمې لري او د دې لپاره چاربیتې بلل کېږي چې بندونه یې یا له څلور بیتو او یا له څلورو مسرو څخه بیخي کم نه دي. په چاربیته کې همیشه یوه اوږده موضوع چې اکثرا عشقي او حماسي وي (لکه د قصیدې او مثنوي په شان) افاده کېږي.

چاربیته د فورم له مخې په عمومي ډول پر دوو لویو برخو ویشل کېږي:

١- ساده چاربیته.

٢- زنځیري چاربیته.

دغه دوه ډوله چاربیتې بیا په خپل وار سره د مسرو د شمېر برابروالي اوږدوالي او لنډوالي پر سبب په ډېرو نورو ډولو ویشل کېږي؛ لکه: د څلورو، پینځو، شپږو، اتو، نهو او لسو مساوي لنډ و یا اوږدو مسرو زنځیري چاربیته.

له مانیز پلوه چاربیته په عشقي، تاریخي، رزمي، نورو برخو وېشل کېږي. د ساده چاربیتې یوه بېلګه، دا چاربیته د نوبنار د محمد دین ده.

مطلع : څـوك به پیدا نه شي د فرهاد او شیرینۍ په شان
یو خای به څوك نه شي د ادم او درخانۍ په شان

بند : یو خای به څوك نه شي لکه و عاشق فرهاد
تل بـه یـې کـولو په اشـنا پسـې فریاد
وه یې کره خواري خکه حـاصل یې شه مراد
کرې به یې خبرې د طوطا د بنارونۍ په شان

بند : کـرې بـه يـې خبرې د مجنون دا مشغولا وه نــه
بل به يې څه نه وو خو په خوله به يې ليلا وه نه
وچ شه لکه دره د خاوند په دې رضا وه نـــــه
بيا به گرځيده په دې پسې د لېونی پـه شـــان

بند : راغی قطب خان چې را روان له رانيــزو نه شو
سر په تيك ويده و څکه پاتې له مزو نــه شــو
پروت و لکه مړی سرو کار يې له نيازونه شـو
غوځ يې په ځيگر که لکه تورې ايرانی په شـان

بند : غوځ يې په ځيگر که چې رانجا عاشق په هير شو
تل يې سر تندی واهه هم ش د خان په ويــر شو
مړ ملا بهادر نيمــبو لا څکه دستـگـيـر شو
هلته ظلم نشته ذی شـاگرده د ځانی په شـان(۵۵)

د دې ډول چاربيتې بڼه داسې انځورېدای شي:

مطلع :

=a________________________

=a________________________

بند :

b________________________

b________________________

b________________________

=a________________________

تر پايه

په دې ډول ساده چاربيته کې له ځينې استثنايي حالت پرته د ټولو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي. د هر بند وروستی مسره په قافيه کې د مطلعې له مسرو سره يو شان وي.

د پښتو اولسي شاعرۍ په باب ډېر ځله دا څرگندونه کېږي چې په دې فورمونو کې ويل شوي شعرونه اکثره د نالوستو شاعرانو زېږنده دي. دا

خبره مطلقه نه ده، په همدې فورمونو کې د هېواد يو شمېر نوميالیو لوستو شاعرانو هم شاعري کړې ده، له هغې جملې نه د همدې چاربيتې په فورم کې په ساده چاربيته کې له پورتني ډول پرته نور ډولونه هم راتلای شي. دلته به د ساده چاربيتې د يو بل ډول دوه بېلګې راوړو. لومړی بېلګه يې د جرار صاحب ده:

د ستـرګـو منځ مې وسو ياره ستا د مخ په نور　　تـك تـور لكـه ماغـوت
تاو کړی په ماغوت کې خپل اشنا ته ورم ضرور　　د سرو اوبنکو يـاقـوت
که وايم ستا په مخ مې دا جوړه کسي وريته دي　　تاثير به د لـمبـې وي
وېښتـه د منځ له تاوه تار په تار سره پراته دي　　دا تاو به د شـغلې وي
خېشو تـه حـيران يم په فرنك يې ورخاته دي　　دا زور بـه د خملې وي
سپين منځ دې معرکه شو امتحان به کړي ضرور　　معلوم به شي مزبوت(٥٦)

په دې ډول فورم کې د سرلومړی او درېيمه مسره د څپو د شمېر له مخې په خپل منځ کې سره برابرې دي او يو شان قافيه تعقيبوي. دويمه او څلورمه مسره بيا په خپل منځ کې د يو شان قافيې لرونکي او د څپو د شمېر له مخې سره برابرې وي د هر بند لويې مسرې په خپل منځ کې د څپو د شمېر له مخې سره برابرې او په خپل منځ کې يو شان قافيه تعقيبوي او وړې مسرې يې په خپل منځ کې خو د هر بند د پای لويه او وړه مسره بيا د مطلعې د لويې او وړې مسرې د قافيې او شکلي جوړښت تابع ده. په ټولیز ډول ټولې لويې مسرې له لويو او وړې مسرې له وړو سره د څپو د شمېر له مخې برابرې وي.

بنه يې داسې انځوريدای شي:

| | |
|---|---|
| a____________ | b____________ |
| a____________ | b____________ |
| =c____________ | =d____________ |
| =c____________ | =d____________ |
| =c____________ | =d____________ |
| a____________ | b____________ |

د دې ډول چاربيتې يو بېلګه هم راوړو. دا د ملا مقصود چاربيته ده:

مطلع:

شین خال دې په مشال ایښی د وروځـو په پیوند  خلېـږي زرافشـان
اوربـل دې الـول لکـه بخمل دې بند په بند  راپورته کړه چشمان

بند:

شین خال دې په مشال ایښی د وروخو په مابین  لـه ورایه تجلی کا
نـری پـوزه الـف خـواږه دې دواړه شـفـتـین  زړګی مـې واویـلا کا
زنخ لرې ګبین خوله دې شیـرین سره دې عنین  څوک څه لره ګیلې کا

***

جمال درکړی رب، لـرې نسب داسـې څرګند  رایت دې که خاقـان
جمال راکړی رب لـرم نـسـب د پـاچـایـانـو  روغ خان ساته کمبخته
عاجـز غریب سری یـې یـاري مـه کړه دخوبانو  چې رانه شې بې وخته
ته خپل مساوي ګوره ستا دې خوی د نادارانـو  لـرمـه طبعه سخته
ژوندی به دې پرې نه ږدم زماخدای په نوم سوګند  تـه واوره دا بیان(٥٧)

زنځیري چاربیته: زنځیري چاربیتې ته اته مسریزه چاربیته هم وایي په دې برخه کې یو لیکوال وایي:

هغه چاربیتې چې اته مسرې لري هغې ته عوامي چاربیته ویلی شو خکه چې د عامو شاعرانو په اصطلاح کې چاربیته وایي همدې ته چې څلور بیته او اته مسرې وي په دې ډول چاربیتو کې د سر دواړه مسرې په خپل منځ کې هم قافیه نه وي بلکې اوله یې په یوه قافیه وي او دویمه یې په بله. او بیا د هر بند په پای کې چې کوم بیت راځي د هغه بیت د دواړو مسرو قافیه د مطلعې د دواړو مسرو له قافیې سره یوشان وي. دغه رنګه عبدالحلیم اثر د ۸ مسرو چاربیته پر درې ډولونو باندې ویشي:

۱- یو قسم هغه ده چې د هر بند اول درې بیتونه یانې شپږ مسرې یې په خپل کور کې سره په یوه قافیه وي او وروستی بیت د چاربیتې له مطلعې سره موافق وي. ددې بیلګه داده:

مطلع:

شاگرده اول نص د الهي پروردګار دی
استاده بل حدیث د محمد نبي حضرت دی

بند:

شاګرده په جهان کې جبرائیل نومی ملك دی
استاذه خاص مقام د ده اووم اسمان فلك دی
شاګرده ټول وجود یې د زنځیر حدیده کلك دی
استاذه سر تر پایه په وزرو باندې چك دی
شاګرده د رحمت په رب کې ډوب لکه سمك دی
استاذه ما په دې خبره هم ویستلی شك دی
بې حده ښایسته د نور په شان شعله انګار دی
د باد په شان ته ګرځي په هوا باندې اوچت دی

بند:

شاګرده زه یې نوم ویلی نه شم وېرول کا
استاذه هغه دا دی چې د روحو قبضول کا
شاګرده قبضول د ګنهګارو په زلزل کا
استاذه بختورو ته په پوزه بو د ګل کا
شاګرده غټ عذاب دی چې زورونه په کوګل کا
استاده په سختی د بدو روحو وښکل کا
کمبختو ګنهګارو ته په دغه شان قادر دی
چې سم یې په شرف یې مقرر ورله جنت دی

بند:

شاګرده زه ډوب شوی د غمونو په دریاب یم
استاذه زه د غره لاندې حصار په په پېچ و تاب یم
شاګرده په تهمت باندې تك تور لکه غراب یم
استاده لاس مې مروړم په ارمان لکه ذباب یم
شاګرده زه غریب بنده د پاك غني وهاب یم
استاذه شکر وایم چې مسلمو کې حساب یم

مـرگـی مـې را نـېژدی شـو نـن سبا له مې رفتار دی
"میاګل" د ګـتـکي ژاړي چـې په مخ کې مې قیامت دی (۵۸)

=a____________________
=b____________________

=c____________________
=c____________________
=c____________________
=c____________________
=c____________________
=c____________________
=a____________________
=b____________________

همداسې نور بندونه

په پورتني فورم کې د ټولو مسرو د څپو شمېر سره مساوي دی. د سر لومړی بیت یا مطلع په خپل منځ کې د قافیې اختلاف لري. دواړو مسرو کې قافیه حتمي او ردیف اختیاري دی. د هر بند شپږ مسرې په خپل منځ کې یوه قافیه تعقیبوي؛ اومه او اتمه مسره یې په قافیه کې د مطلعې د لومړی او دویمې مسرې تابع ده.

۲- د اته مسریزې چاربیتې دویم ډول:

په دې ډول چاربیته کې د سر یو بیت چې د مطلعې په توګه راځي. لومړی مسره یې ځانته قافیه لري د دویمې مسرې په منځ کې یې یوه قافیه راځي چې د لومړی مسرې له قافیې سره سمون خوري خو د دویمې مسرې وروستی قافیه ځانته جلا او د لومړی مسرې له قافیې سره سمون نه لري. د هر بند لومړی، درېیمه، پینځمه مسره، په خپل منځ کې هم قافیه وي او هم د دویمې، څلورمې او شپږمې مسرې په منځ کې راغلې قافیې هم د نوموړو مسرو د قافیو پیروي کوي. خو د دویمې، څلورمې او شپږمې مسرې په پای کې نورې قافیې راځي چې دا بیا د نوموړو مسرو خپلمنځي قافیې ګڼل کېږي، د بند اوم او اتم بیت د مطلعې د شکلي سکښت تابع وي.

لکه په دې لاندې مثال کې:

د ښـــایسـت اواز دې لاړو په عالم کې لور په لور
زه دې سوی یم په اور، تیك دې کوزکړه له جبینه

د ښـــایســـت اواز دې لاړو په کـــابل په هندوستان
څـــکــــه نـــاســـت یمه حیران، رارسېږي یا نصیبه
عـــاشـــقي ده ډېـــره گرانه ځي د اوښکو مې باران
پرې مې لوند شولو گرېوان، پوه نه شوم له ترتیبه
پـــه هـــر چـــا بـــانـــدې تیرېږي د فاني دور دوران
څوك راځي څوك ترې روان، کاندي یاروته قریبه
بـــارې خـــپـل دی که پردی دی راکوي راته پیغور
ســـترگې نه شمه نیولی گوره ډوب یم ستا په مینه

بـــارې خـــپـل دي که پردي دي راکوي راته تهمت
کـــتـــی نه شمـــه اوچت په یاری کې د بې نـــنگه
چېرې تا کتلی نه دي لکه سپي ته چې کړې ست
تـــاو چې راغی په صورت، ته له مانه کوې څنگه
جاروتـــی نـــه شمه بیرته رب دې نه کا څوك عادت
دسروشوندوپه شربت،کیف یې زیات وینم له بنگه
پـــه رنـــې زنـــې د پـــاســـه دې خالونه درې څلور
ماپرې تل کړی دی زور، خوندیې زیات دی له گبینه

د نـــری زنـــې لـــه پـاســـه دې خـــالـونه دي قطار
تـــورې زلـــفـــې دې تار، تار دي پرتې لکه وریځې
پـــه سینه کې دې یخ شوي دي د مینې دوه انـار
ورتـــه پـــروت یمـــه بـیـمـــار، دارو مې د مرض یې
رب دې نه کاڅوك په رنځ کې ستاد مینې گرفتار
نـن دې خان کړلو سینگار، بېگاه مې په اور سوزې
کله زېرشي کله بم شي سره گنگرې دې کوې شور

قدم اخلي په تکور، بناپيرى راغلي له چينه.(۵۹)

دلته به په عمومي ډول ددې ډول چاربيتې بڼه رسم شي:

a________________________________

b______________ a______________

c________________________________

d______________ c______________

c________________________________

d______________ c______________

c________________________________

d______________ c______________

a________________________________

b______________ a______________

او همداسې نور بندونه

د پورتنى چاربيتې د لومړي بند د وروستى مسرې په منځ کې (سترګې نه شمه نيولى ګوره ډوب يم ستا په مينه) کې قافيه خطاشوې خو په نورو بندو کې پورتنى شکل په پوره ډول تعقيب شوى دى. د يادونې وړ ده چې په پورتني ډول چاربيته کې د مسرو د څپو شمير سره مساوي وي.

۳- د اته مسريزې زنځيري چاربيتې بل ډول دادى چې ټوله مقفى وي او هربيت اوهره مسره يې په خپل منځ کې قافيې لري. يوه بېلګه يې داده:

| | |
|---|---|
| د ليلا په لبو سور | پيزوان لکه بنامار |
| ترينه خي شغلې د اور | ______نتکى نه يې باربار |
| د شاهد په سپين جبين | روپى عجب زينت که |
| راوخي ماسپخين | ژوندى زما صورت که |
| زما زړه يې کړ غمګين | سرداره څه حکمت که |
| ګونګري يې کوي شور | چې دا شي په رفتار |

***

| | |
|---|---|
| رفتار مې کوي خوند | ورخمه مازيګر |
| وربل مې بند په بند | د سپين تندي په سر |

خراب به دې کړم ژوند کاته کړم په هنر
شين خال مې ادم خور ذقن مې مزه دار(٦٠)

په دې ډول چاربيته کې له څينو مسرو پرته د نورو اکثرو مسرو د څپو شمېر سره مساوي وي. په مطلع کې د لومړي او دويم بيت د لومړيو مسرو قافيې سره يو شان وي او د دويمو مسرو قافيې په خپل منځ کې يو شان دي. د هر بند د دريو بيتونو د دريو د لومړيو مسرو قافيه يو شان او دريو نورو مسرو قافيه بل شان وي. خو د څلورم بيت رغښت او بڼه د مطلع د بيت تابع وي. هندسي جوړښت يې په دې ډول دی:

مطلع:

a__________ b__________
a__________ b__________

c__________ =d__________
c__________ =d__________
c__________ =d__________
a__________ b__________

د ډېرې قافيه لرونکې زنځيري چاربيتې يوه بېلګه داده:

مطلع:

کله به راوړې دواړه بس دې دي رنګين شيرين
سپين دې جبين زرين مخ دې ځلېږي

بند:

کله به راکړې دواړه لب شات او ملهم صنم
مه کړه ستم هر دم په غضب بڼورې
سرې دې منګولې همېش وړې زړونه قلم قلم
اخلې قدم په چم سترګې دې تورې
په دردې پروت يم همېش غواړم ستاکرم محکم
لرې کړه غم الم که رب ته ګورې
نن دې په غاړه باندې زانګې لونګين رنګين

سپـــین دې جبـــین زریــن مخ دې ځلېږي.(٦١)

په دې ډول چاربیتې کې د سر لومړی بیت یا مطلع په لومړۍ مسره کې یو شان دوه قافیې موجودې وي. د دویمې مسرې تر نیمایي پورې بیا یو شان دوه قافیې چې د لومړی مسرې له قافیې سره یو شان وي راځي او د مسرې په پای کې اهنګینه کلمه راځي چې له دې قافیو سره په جوړښت کې توپیر لري.

د هر بند لومړۍ مسره ځانته یو شان دوه قافیه لري او د دویمې مسرې په منځ کې د لومړۍ مسرې په شان دوه قافیه راغلي وي او د همدې مسرې په پای کې یوه ځانګړې قافیه؛ دریېمه مسره له لومړي مسرې سره په قافیه کې یو شان وي څلورمه ددویمې په شان وي، پینځمه د لومړۍ او شپږمه د دویمې په شان وي او هم د څلورمې او شپږمې مسرې په منځ کې راغلې قافیې د بند د لومړۍ مسرې د قافیې تابع وي، اوومه مسره د لومړي بیت یا مطلع د لومړۍ مسرې په شان وي او اتمې مسرې د منځ قافیې د مطلعې د لومړۍ مسرې دقافیو تابع وي او پاتې برخه یې د مطلعې د دویمې مسرې پاتې برخه وي؛ د مطلعې د دویمې مسرې تکراروي. په دې چاربیته کې د سر بیت لومړی مسره ١٤ او دویمه ١١ څپې ده. د بند لومړی، دریمه، پینځمه او اومه مسره هم ١٤ څپې او دویمه، څلورمه، شپږمه او اتمه مسره ١١ څپې لري.
هندسي بڼه یې داسې انځوریدای شي:

aa__________________________________

________________aa________________

bb__________________________________

c________________، bb________________

bb__________________________________

c________________، bb________________

bb__________________________________

c________________، bb________________

aa__________________________________

________________، aa________________

## ۷- مقام:

خیني پښتانه یې رباعي هم بولي، پښتانه ولسي مجلسیان یې د مجلسونو په پیل کې وايي، مقامونه نسبتاً ورو، اوږده او په داسې تال او اهنګ ویل کېږي چې ټول مجلس چوپ شي او پوره غوږ یې نیولی وي، کله چې مقام خلاص شي نو سندرغاړی سمدستي لوبه، چاربیته او یا بګټۍ یا غزله پیل کوي چې اوریدونکي سمدلاسه له هغه ارام او غلي حالت نه راویښ او په شور او زوږ یې راولي.

د مقامونو مضمون معمولاً ټولنیز او اخلاقي وي او د پند او عبرت ښه مطالب لري، عشقي مقامونه هم شته، مقامونه لکه د دیواني غزلو داسې جوړښت لري د لومړی بیت د واړه مسرې یې په یوه قافیه وي او د نور بیتونو لومړی مسرې یې له قافیې نه ازادې او دویمې مسرې یې له لومړي بیت سره قافیه تړي. له دریو څخه نیولې تر پینځو او شپږو بیتونو پورې وي. د مقام هره مسره دولس یا یوولس څپې وي له دیواني غزلو سره یې توپیر دادی:

یوه خو یې ژبه ډیره ساده عام فهمه او اولسي وي او بل د ولسي سندرو د قافیه تړنې پر اساس د سره ورته غږونو قافیه کول پکې عادي خبره ده، ځکه دغه سندرې په شفاهي ښه منځته راغلي نه په لیکنۍ بڼه. بل دا چې ویونکی یې ولسي شاعر وي، د سېلابونو شمېر یې یوولس یا دولس وي. دا چې د ولسي سندرو دغه فورم ولې مقام بولي باید وویل شي چې د مقام نوم ورسره په څو سببه وړ دی:

۱- دا چې د مقام لغوي مانا (ځای) دی او دغه سندرې د پښتو په ادبي مجلسونو کې دچاربیتو غزلو بګټیو او بدلو څخه مخکې ویل کېږي په دې حساب نو مقام دمجلس پیل اودنورو ولسي نظمونو لپاره انتظام برابروي او خلک دې ته متوجه کوي چې خپل ځایونه ونیسي او په کراری سره مجلس واوري.

۲- دا چې په مقام کې پندونه او نصیحتونه بیانېږي نو کېدای شي چې سړی د مقام په موضوعاتو عمل وکړي او یو لوړ اخلاقي مقام ونیسي له دې کبله چې دا وروستۍ خبره سمه او مانا لرونکې ده او نوم له نومول شوي سره برابر دی دا سندرې په دې نامه یادې شوې دي که چیرې دا سندرې

مقام وبولو نو یوه بله گټه به مو هم کړې وي او هغه دا چې د دیواني سندرو له رباعي سره به مو د اقتباس مخنیوی کړی وي. دلته به د اولسي شاعر گلستان یو مقام چې په دغه مقام کې د (بحث) د کلمې عامیانه تلفظ (باس) له لباس او خلاص سره قافیه شوی دی. د بېلگې په توگه راوړو:

د کم اصلو له یــاری نـــه واخلــه لاس
مـــه غـــولېـــږه د هغـو په تش لباس
د کـــم اصـلو یارانه د خره سورلي ده
عــاقبت به دې په کنده کړي راخلاص
کـــه اصیـــل سره دې لړه نیکي وکړه
شـــامـــدام بـــه درنه گرځي کوز او پاس
لـــه کـــم اصلـــونـــه وفا کله مونده شي
دامـتل دی په هرځای کې عام و خاص
چې لـــه لرې نه یې گورې ورنه تښته
گــلــســتـــانـــه ورسره مـــه کوه بـــاس(٦٢)

هندسي جوړښت یې دا دی:

a______________________________
a______________________________

_______________________________
a______________________________

_______________________________
a______________________________

_______________________________
a______________________________

_______________________________
a______________________________

# ۸- بدله:

د پښتنو په ځينو سيمو کې په عام ډول ټولې اولسي سندرې لکه، لندۍ، سروکي، د واده سندرې، چاربيتې، نيمکۍ او نورې بدلې بولي خو دلته زموږ مطلب د اولسي خاصو سندرو له هغه ځانګړي فورم څخه دی چې پښتانه مجلسيان يې ملي غزلې يا ولسي غزلې بولي.

دغه سندرې هم لکه د ولسي سندرو د نورو فورمونو په څېر د عربي عروضو او بحرونو په لنډ تنګ شعري چوکاټ کې نه ايساريږي او د اريايي ژبو د شعرونو په شان د سېلابونو او څپو پر بنسټ ويل کېږي.

بدلې عموماً شفاهي دي او مجلسيان يې خوله په خوله يو بل ته سپاري خو د بدلو ليکلې او پخوانۍ بېلګې هم لرو؛ تر اوسه زموږ په ليکلو اسنادو کې د شيخ بستان بړېڅ بدله له لومړنيو لاسته راغلو بدلو څخه ده چې د لسمې پېړۍ په وروستۍ لسيزه کې تر زرم کال وړاندې ويل شوېده.

بدلې له شکلي پلوه په لومړي سر کې په ساده او سپرو بدلو وېشل کېږي او بيا يې هر ډول په خپل کور کې د مسرو د شمېر او مسرو د اوږدوالي لنډوالي او برابروالي پر اساس په ډېرو نورو برخو وېشل کېږي. د بدلو هر بند اکثرا له دوه مسرو نه زيات چې کله يې هر بند درې مسرې، کله څلور مسرې او کله لا زياتې مسرې هم لري چې د (خلکو سندرې) مولف په شکلي لحاظ بدلې په پينځلسو ډولو وېشلي او که پلټنه وشي ښايي تر دې هم زيات ډولونه ولري.

اولسي بدلې لومړی يو کسر (مطلع) لري او وروسته يې بندونه وي کسر يې له يوې اوږدې او يوې لنډې مسرې څخه جوړ وي. چې بيا د قافيوي ترون له مخې له هر بند سره قسما يا ټول تکراريږي. د ساده بدلې په بېلګه کې د شيخ بستان بړېڅ (۱۰۰۲ هـ کال مړ) د بدلې سر او يو بند راوړو:

مطلع:

اوښکې مې څاڅي پر ګريوان يو وار نظر که پر ما — راسه ګذر که پر ما

بند:

د خــــوږو زړونو له حاله ته يې ای باداره اګاه — يې د بې وزلو همراه

د خپل عزت په روي (بستان) ته کړه مهر ښندل کړي له ګناه ګوابښل
اوښکې مې څاڅي پر ګريوان يو وار نظرکه پر ما راسه ګذر که پر ما

په دې ډول بدله کې يو ځل د سر لومړی بيت چې يوه مسره يې اوږده او بله يې لنډه ياني تقريباً د هغې تر نيمايي وي. د بند هره اوږده مسره يې تقريباً د لومړي بيت له اوږدې مسرې او لنډه يې له لنډې سره برابره وي. د بند هر بيت په خپل منځ کې هم قافيه وي. او د بند په پای کې د بدلې لومړی بيت بيا تکرارېږي. هندسي شکل يې داسې دی:

مطلع:

=a________________________

=a______________

بند:

b________________________

b______________

c________________________

c______________

=a________________________

=a______________

سپره بدله د بدلې بل ډول دی چې له ساده بدلې سره په جوړښت کې توپير لري. په دې ډول بدله کې ګڼ شمير قافيې موجودې وي. چې دې ډول بدله کې هم د مسرو اوږدوالی او لنډوالی موجود وي خو د سر د لومړي بيت د مسرو له اوږدوالي او لنډوالي سره يې د بندونو د مسرو اوږدوالی او لنډوالی برابر وي. دلته دښاغلي جرار دسپري بدلې کسراويو بند وړاندې کېږي:

مطلع:

دا دی جنګيږي د کوګل د پاسه هار که مار
چې لري زار په خوار کوي تاثير

بند:

پر ما شوی تيرې ستا په مينه کې خواری زاری
لاس د ياری جاری راکړه محکم

پرسان مې وکړه ساه مې راغله تر مرۍ پرۍ
زلفې چورۍ نرۍ رقم رقم
ورکړه چې بایلو زړه صنم ستا په رخسار انار
سینه ګلزار "جرار" مه کړ تاخیر.
هندسي جوړښت یې داسې دی:

a.a___________________________

b_________a.a________

c.c___________________________

d_________c.c________

c.c___________________________

d_________c.c________

a.a___________________________

b_________a.a________

## ۹- لوبه:

لوبې هم د ولسي خاصو سندرو يو ځانګړی او جلا شعري ډول دی چې له بګتيو څخه هم چابکې ويل کيږي. لوبې تر ډيره حده د لنډيو په څم کې رنګ شوي کله کله يې بندونه لنډيو ته ورته جوړښت خپلوي او کله بيا په وزن او رواني جوړښت کې لنډيو ته ورته بندونه لري.

ځيني کسان لوبې له بګتيو سره ورته بولي په داسې حال کې چې لوبې د يوه ځانګړي شعري فورم په توګه له بګتيو سره يو د ويلو په وخت کې توپير لري او بل دا چې د لوبو د کسر مسرې اکثره وخت سره په يوه قافيه وي او بګتۍ تول تال دا شان نه دي. لوبې له نيمکۍ سره هم جوت توپير لري څکه په نيمکۍ کې لنډي کټ مټ راوړل کيږي او په لوبه کې په خپله لنډۍ نه راځي او بل دا چې لوبه د اولسي سندرو له عمومي برخې سره چې ويونکي يې معلوم اړه لري. دلته به د لوبې يوه بېلګه راوړو چې ولسي شاعر محمد نور ويلې ده:

### لوبه:

غمونه ليرې کړه له ما عاجز غمګينه

راتاوشه لونګينه

ودې ويشتم روغه دې نه کړم

نوره ياري درسره نه کړم

بل دې په سرو شونډو نتکۍ زانګي مينه

راتاو شه لونګينه

***

پاس په بامو ګرځي کوترې

زما د خوږ زړګي دلبرې

چې شال پر سر کړي ځنګه ښه ښکاري سنګينه

راتاو شه لونګينه

***

د محمد نور فقيره بخته
ښنګه راپرېوتې له تخته
بخت مې کوټه شو اس مې لاړ سره له زينه
راتاو شه لونګينه (٦٣)

په دې ډول لوبه کې د سر لومړۍ مسره اوږده او دويمه لنډه وي. بيا د هر بند دوه لومړۍ مسرې په خپل منځ کې هم قافيه وي او هم يې ښپې سره برابرې وي. د بند درېيمه مسره د لوبې د سر بيت (کسر) سره په قافيه او د ښپو په شمېر کې يو شان وي او ورپسې د سر بيت دويمه مسره د تکرار په ډول راځي. شکل يې داسې دی:

a________________________________
a________________
=b________________
=b________________
a______________________________
a______________
c________________
c________________
a______________________________
a______________
d________________
d________________
a______________________________
a______________

## ۱۰- داستان:

داستانونه د اولسي ښانګړو سندرو د یوه ښانګړي فورم په توګه د شکل او مضمون دواړو له پلوه ښانته خاص سکښت او بیل جوړښت لري او د اولسي ادب هر څېړونکی په دې پوهېږي چې زموږ اولسي ادبیات د مضمون له پلوه زموږ د اولس د قامي ژوند هنداره او د شکل له پلوه هم زموږ د ژبې خاص ملي اهنګونه دي چې زوړ اریایي اساس لري او پښتانه مجلسیان یې په ښانګړي وزن او خاصه لهجه وایي. داستانونه هم د اولسي خاصو سندرو د نورو فورمونو په څېر اوږده ماضي لري او د لومړي ښل ویلو ښای او نېټه یې معلومه نه ده، یوازې د داستانو هغه بېلګې چې د پټې خزانې په واسطه لاسته راغلي څلور سوه کلن عمر لري په پټه خزانه کې د حافظ عبدالطیف اڅکزي د (سوی او اوبښ) فولکوریك کومیډي او انتباهي داستان راغلی چې دلته یې یو کسر او یو بند وړاندې کېږي:

غوږ ونیسی یارانو د اوبښ او سوي قصه سوه
خورا ډېره خوږه سوه

یو سوی د اوبښ اشناسو
بـې حـده یـې همرا سو
یاري به یې کوله یو له بله یې یارانه سوه
خورا ډېره خوږه سوه

داستان د ډېرو اوږدو مضامینو د بیان لپاره پوره زغم لري. مطالب یې عموماً فوکلوري دیني، رزمي او تاریخي وي، لکه په اخلاقي برخه کې د اولسي شاعر غلام شاه د حاتم طایي د سخاوت روایتي داستان:

په وړاندې زمانه کې یو فقیر و مستانه
غـوښته یې شهزادګی پاچا ته ودریده

په عشقي برخه کې د سیف الملوك او بدری جمالې داستان:

روان شـو شهزاده سیف الملوك باغ ارم ته
سفر د جدایی دی رخصت غواړي له پدره

په دیني برخه کې د حضرت ابراهیم خلیل الله د صداقت، حق او رښتیا ویلو روایتي فوکلوري داستان:

د نمرود په زمانه کې
راغلی په کیسه کې
پیدا شو ابراهیم خلیل الله دوست د اکبر و
بېشکه پیغمبر و

داستان ویونکی د داستان ویلو په وخت کې د تفریح او جلب لپاره لندۍ هم وایي چې د داستان خوند نور هم زیاتوي. ځینې پوهان او ادبیان د اولسي خاصو سندرو دغه فورم عربي مثنوي او قصیدو سره یو شان بولي او وایي چې اولسي داستانونه د عربي مثنوي او قصیدو په پیروۍ ویل شویدي. باید ووایو چې دلته داسې ډېر دلایل شته چې د هغو له مخې موږ اولسي داستانونه له کتابي مثنوي سره یو ډول نه بولو او لومړی اریایي فورم او دویم تقلیدي شکل گڼو. لومړی دا چې د اولسي داستان د زنځیر د سرکړۍ له لرغونو اریایي سرودونو سره نښلي اودعربي مثنوي اوقصیدوپه پیروۍ نه دي ویل شوي.

د اولسي داستانونو ویونکي معمولا اولسي او نالوستي شاعران دي. دغه اولسي سندرې تولې قافیوي ازادۍ لري او هغه شرطونه چې په مثنوي او قصیدو کې شته ولسي داستانونه یې پر منلو مکلف نه دي.

د اولسي مثنوي ډوله داستانونو په څېر نورې سندرې هم په پښتو ادب کې لرو چې مثنوي ته ورته دي لکه د بیټ نیکه مناجات. د شکلي جوړښت له مخې دغه مناجات هم د مثنوي په ډول دي خو د تذکرة الاولیا مولف یې سندره بولي. دغه ډول د کاکړ یو فورمي جوړښت هم د مثنوي په ډول دی مگر هیڅا له مثنوي سره یو شی نه دی بللی او نه یې مثنوي ته غاړې ویلې دي. دا هم د اولسي داستان یو څو بیتونه:

خـان بـابـا د چـکـدرې چـې پـه سـفر لاړ
لـه دنـیا نـه د حـق لـور تـه بـرابر لاړ
ظـریف خان لعل بیلك ترې پاتې ماشومان شول
مـورې مـخـکـې مـړه وه دواړه یتـیمان شول
چـې یـې لـور بـې بي کو پاتې شوه یتیمه
پـریـده بـه لـه دښـمـن ظـالم غلیمه

دا هم د یوه بل داستان یوه برخه:

نن مې ولید عجیبه ښکلی داستان
طلسمات به درته واړه کړم بیان
د یـمـن یو شـهزاده و زما یاره

يوه ورځ ښکار ته وواته له ښاره(٦٤)

دا ډول داستان په پښتو کې په څو ډوله دی. مثلاً د حافظ عبداللطیف خان اڅکزي د (سوي او اوښ) فولکوریك کومیډي او انتباهي داستان داسې دی، د کسر لومړۍ مسره اوږده او دویمه یې لنډه خو دواړه په خپل منځ کې هم قافیه وي. وریسې بند راځي. د بند د سر لومړۍ دوه مسرې په خپل منځ کې هم قافیه او لنډې دي. درییمه مسره یې د کسر له لومړۍ مسرې سره په اوږدوالي او قافیه کې یو شان وي. بند څلورمه مسره هماغه د کسر د دویمې مسرې تکرار دی. شکل یې داسې دی:

=a________________________

=a____________

***

=b______________

=b______________

=a______________________

=a__________

د حضرت ابراهیم خلیل د صداقت داستان په دې فورم کې دی چې لومړی دوه لنډې هم قافیه مسرې چې تقریباً په څپو کې برابرې دي وریسې یوه اوږده مسره چې د هغو دواړو مسرو د څپو له مجموعي شمېر سره یې څپې برابرې دي اوځانته بېله قافیه لري، وریسې یوه لنډه مسره راځي چې په قافیه کې له دریيمې اویه څپوکې له دویمې مسرې سره برابره وي.سکښت یې په دې ډول دی:

=a________________

=a________________

=b________________________

=b______________

بل ډول داستان چې زیات عمومیت لري دا دی چې هر بیت یې ځانته قافیه لري خو ټولو بیتونو د مسرو د څپو شمېر سره برابروي:

=a______________

=a______________

=b______________

=b______________ او همدارنګه نور...

## ۱۱- بګتۍ:

په پښتو اولسي شعرونو کې دغه فورم ځانته د خوند او رنګ بېل بازار لري، بګتۍ پښتانه مجلسیان او سازیان له مقام، چاربیتو او بدلو څخه کله وروسته او کله هم په منځ او پای کې په یوه ګرم تال او وزن خو په ورو او نرم اواز (اهنګ) د مجلس د رنګ د بدلولو او د اورېدونکو د خوښۍ او خوشالۍ زیاتولو لپاره وایي. د بګتیو د اورېدلو په وخت کې په مجلس کې ټول حاضر کسان په ولولو راځي اتومات ټول ښورېږي او له مجلس نه خوند اخلي.

بګتۍ هم د بدلو او چاربیتو په څېر کسر لري خو کسر یې معمولاً یو بیت (دوه مسرې) وي. بندونه یې هم ډېرې مسرې نه لري او په عمومي توګه د څلورو مسرو په شاوخوا کې وي. د بندونو شمېر هم محدود وي، خو بیا هم د بګتیو بېلابېلو بېلګو خپلمنځي توپیرونه ډېر دي. په بګتیو کې هم هر ډول عشقي تاریخي افسانوي کیسې په لنډ دول بیانېږي، دا یې هم یوه بېلګه ده:

وزیرســــتان بـــانـدې جـــنګـونـه
انګرېزان وایي چې سبا به جنګ له خــونه
انګـــرېـــز ویلی چې خاونـــده څه اسرار دی
په سترګو نه وینم غازیان، په ما ډزهار دی
نصیب مې نشته بری، بند مـــې شو توپونه

فقیر ویلي دا ستا لاس دې را دراز وي
که د بغداد میرنی خوان زما همراز وي
په شان د ختو به دې بند کرمه بمونه

وزیرستان باندې خو نن سبا جـګړې دي
غازیانو لاس کې پولادي تورې تـیرې دي
ما شېرافضل یې په شعرو کړل صفتونه.(٦٥)

دا ډول بګتۍ د سر بیت د څپو د شمېر له مخې له لنډیو سره یو شان وي. یانې دا چې د لنډۍ لومړۍ مسره هم نهمه او دویمه دیارلس څپې

ده خو په وزن کې هغه وزن نه لري چې لندۍ يې لري خصوصاً لومړۍ مسره. د بندونو دوه مسرې يې په خپل منځ کې هم قافيه او دريېمه يې د کسر يا د سر بيت له قافيه سره يو شان وي. د بګټۍ سر بيت له لومړي مسرې پرته نورې تولې مسرې د څپو په شمېر کې سره مساوي وي. هندسي شکل يې داسې دی:



# څلورم څپرکی

## د پښتواولسي شاعرۍ ځینې نور فورمونه

په پښتو اولسي ادبیاتو کې د نظم یو شمېر نور داسې فورمونه شته چې په هغو کې د اولس ځینو ستونزو، ربړو، دوډونو، تاریخي روایاتو، نیمګړتیاوو، دردونو، ناخوالو او د چاپېریال پېښو انعکاس موندلی دی. دا فورمونه په دې ډول دي:
منظوم، فالونه، د بي بي دستې سندرې، لنډکی، سولې، برغازي، سلسلې انګی یا چغیان، د میندو سندرې، د ماشومانو سندرې، د ورو مشاعرې، کیسې د ځوانانو سندرې، محلي پارچې یا اولسي ننداری، ساندې، نکلونه، د ښادی سندرې، تاریخي نارې، سنځر خېلې نارې، د مروتو کسرونه، سوزخواني او ځینې نور. څرنګه چې د نظم دا پورتني فورمونه د پښتو نظم د خینو نورو اولسي فورمونو لکه لنډۍ، سروکې، ګاګرې غاړې، د اتڼ نارې، ببولالې، چاربیتې، مقام، بدلې، لوبې، بګتۍ او داستان په شان ډېر دود او اغیزنه لري. نو دلته یې یوازې د هره یوه د بېلګې په راوړلو سره بسنه کوو.

منظوم متلونه:
چې ډول دې وي په څنګ
له وهلو یې څه ننګ
***

امیر چې ظلم کار وي
اور بل پر تول دیار وي

فالونه:

د جنــت په مــنــاري
ســور چرك وهي ناري
شير د خداى تــيرېږي
خلكــو كــانـدئ ننداري
***
د پاسه مســلــه راله
پر كل جهان خوره راله

د بي بي دستي سندرې:

د دوهــی ملنګي سر دي ولې توردی
سر مــې داسې تور دی پر مونږ هم
ښه لوی دين د محمد رسول الله دی
لا الــه الله محــمــد رســـول الله
بــرايــي د شيــرعلــي د لور واده و
ملــكــی په ورا رالی له ښه زړګي يې
د ســـتــركــو كــسـي ســره وو
ښه لوی دين د محمد رسول الله دی
لا الــه الله مــحــمــد رســول الله

لنډکی:

ته چې جواري کرې ما به بايه کرې مينه
مـــه راپسي ژاړه وور ګيه نه مي درکوينه
جـلـك كره مروندونه جلی غيرې له درخمه

سولې:

سولې تكومه تكوم تا به واده كمه
پـــه خداى مې دې قسم وي وپلاني ته به دې وركمه

سولې ټکومه ټکوم زه پلانی نه کوم
په خدای مې دې قسم وي پلانې زوړ دی که یې وه کمه
سولې ټکومه ټکوم تا به واده کړمه
په خـدای مې دې قسم وي و پلاني ته بـه دې ورکـمه
سولې ټکومه ټکوم زه پلانی نه کوم
په خدای مې دې قسم وي پر ما لوی دی کــه یې وکمه.

برغازي:

بازار میان دی خولګۍ راوړه
چرګ اذان دی خولګۍ راوړه
لوړ سـهار دی خولګۍ راوړه
زما تـلوار دی خولګۍ راوړه

***

راخــه ورې راخــه چې خو
د ګل کېدی راخه چې خو
نن ســبا راخــه چې خـــو

***

الکــانو کـور مــه چیرې دی
د لال تــکـر مــه چیرې دی
د مستی غولی مـه چیرې دی

سلسلې:

را وتــلـــــی پــر سحر یم
زه د ښـــو نجـونو اجل یم
په شان د سپینکي مار یم
د هــر چـا تر اوده تر یم

انګی یا چغیان:

زه پــه خپل کور کې وم په راحت

بـابـك خـرخـه کرړم په ډېر دولت
پـه پردي کور کې مې نشته عزت
خـــود بــه ژړا کړم په هر ساعت
* * *
شـيـنـکـی کـوتره وم بنوربېدمه
نــه چـا نـيـومـه نه چا کتمه
په هر يو تکي به پرېـوتـمـه
نـن نـاولـده يـې کـېـنـسـتـمه

د وړو مشاعرې:

د دې خای اور سيچو
چرګه راغله بې بچو.

د دې خـای او ددې ډنده
تير پروت دی شل برغنده

تـه وايه غنم
خبرې دې منم.

کیسی:

په يورپ خي اسمان ته
چارچاپيره تول جهان ته (د سترګو ليد)

د پاسه راغی سور بلوڅ
اغوستي يې دي پنځه پنخوس (پياز)

د ځوانانو سندرې:

ابکه له کمه رالې
له بلخ و بخارا

په شا دې څه شی دي
وريځ او باران
مايني دې څو دي
ويل يې اووه
نومونه يې څه دي
ويل يوه چيخته ده
يوه بخته ده
يو تر کوټ لاندې ورسته ده
يوه اسمان ته غرېده
پچکولمه يې وشليده يوه سپينه زليخا ده.

## محلي پارچې يا اولسي ننداري:

۱- تمثيلي پارچې:

وئ وئ مرم ابی
بچی کوم خای دې خوربري
بچی کوم خای دې خوربري
ابی ګيده مې خوربري
ابی ګيده مې خوربري
ګولی به درته راورم
نه خورمه ګولی
دا ګولی له زارو دکې دي
نه خورمه ګولی
دا ګولی له زارو دکې دي
ابی ګيده مې خوربري
بچی کوم طبيب دې خوښ دی
بچی کوم طبيب دې خوښ دی

دا (پلانکی) خان طبیب مې خوښ دی پرې رغېږمه
نه خورمه ګولۍ دا ګولۍ...

۲- کمیډي پارچې:

ما بوري نانګه خوړل
زامن مې بلا وخوړل
هی هی اجي ډومبك
ما بوري ګذر راوړی
دوی د خاورو ډك خوړلی
هی هی اجي ډومبك

۳- عادي پارچې:

د یوې تاریخي پېښې په باب:

نـــواب يـــې مرکړ په خـــنـکـلـه کې نوابه ګـل
وینې یې راغـلـې پـه راده کـــې نـوابه ګـل
د نـــواب سـتـرګـې غـتـې نـوابـه
په هر میدان یې اړوي لکه سکروټې نـــوابـه ګل
نـــواب دې پـــټ مـــې تـــېروېـــه نـــوابـه
دلته مې خورده او ورور مه راخبروئ نوابه ګل.

سانديې:

په لنډیو کې ساندې:

(پلانکی) د خاورو لایق نه دی
دا (پلانکی) دی ورته جوړه کړي بالکۍ په سینګارونه
که نور دې هر څه میراتېږي
میرات دې مه شه دا د غاړې تاویزونه
بې وروره خور په کوڅه راغله
ناره یې وکړه شپه به چا کړه کومه

## د نکلونو ناري (غړونه):

لکه د ادم او درخو په نکل کې چې ددرخو رويباره (استازې) ادم خان ته د درخو احوال وروړي نو ادم په خپل ښخې توتيا داسې غږ کوي:
(نکل چې وايي) ادم وويل:

زمـــا تــوتــيا عـــزت يې وکړه
دغه استازی د درخو راغلی تاته

کله چې درخانی د خپلې ملګرې بسوګی واده ته خي نو مور يې منع کوي او داسې غږ کوي:

ته چې دې واده ته ځې سلا مې نه ده
اوس وتــنــه د هــمــداسې نجونو نه ده

درخو وايي:
تر قيامته به کوې تورې ماتورې
خان به جوړ کړم دواړه سترګې به کړم تورې
د بسو واده ته خم ادکی مورې.

## د ښادی سندرې:

د کونج ميرمنې پاڅه که دې زړه شي
هومره خو پانه ځي چې پلانکی خان دې لونګی په لاس درته را نه شي
***

که د بربنګو ونه يې اوس به ګلونه نيسې
که د دادا د کوره يې
اوس ترينه ووتې
***

زموږه ناوې تيله داره ده نه ژاړي
چې د (ميږه نوم يې اخلې) لغتې وخوري دا به بنه ژاړي.

## تاريخي ناري:

د هوتکو د دورې:

ځوك خبر وو چې تقدير به كوي داسې
شاه حسين به نادر نيسي
بيا به يې نورې د ايران ته بندي باسي

**د احمد شاه بابا د وخت:**
كه زمرى دى شاه ولي د جنګ زمرى دى
له سنګرو يې ايستلى ميړنى دى.

**سنځر خېلې نارې:**
سعدالله ول په پښې كې مې اخغى دى
اخغى مه راځخه كاږى
تر ما لاندې د اودولو او سلى دى

شاه نادر ويل زما له دا غونډيه ډار سي
دوست محمد پروزلى
دوست محمد پرېكړې راوليار سي

**د مروتو كسرونه:**
د سر(مطلع ) يو دوه بېلګې:
ډيرې انديښنې مې په زړګي شوې راچاپېرې
ښكلې محبوبه پيزوان په شونډو رېږده

د مروتو يو كسر:
چې په تا باندې ښيا هغه به وشي
چې په تا باندې ښيا نوره به نه شي
سلطان خيل موسيان ګنجيو لشكري شي
الهي په تا باندې راولې خواري
خواري په تا باندې راولې آه سخته

**سوز خواني:**

د نورالله شاعر يوه سوز خواني:

يارانو تول په وسلې وو يو لاسونه

نن بهار دى كربلا

شاميان نږدې شو ورته وتړو صفونه

تور غبار دى كربلا

ورځ د لسم دى د علي د زويو ننګ دى

بېدار شو وخت د جنګ دى

عباسه وروره مخكې واخله نشانونه

نن ګلزار دى كربلا.(٦٦)

# پایله

کله چې ما د پښتو شعر د بېلا بېلو فورمونو د لټون هڅه پیل کړه نو داراته لا ښه څرګنده شوه چې د پښتو شاعرۍ لمن ډېره پراخه ده. پښتو نه یوازې اکثره هغه شعري فورمونه چې په عربي ژبه کې دود دي راخپل کړي بلکې په همدې فورمونو کې یې ډېر جولیز زیاتون هم راوستی دی.

ددې شعري فورمونو شمېر هم له هغو زیات دی چې فکر یې کېږي. کله چې خپله د پښتو د ځانګړو شعري فورمونو خبره رامنځته کېږي نو دلته هم سړي ته په ډاګه کېږي چې تر اوسه پورې ددې امکان برابر شوی نه دی چې د پښتو شاعرۍ ټول فورمونه دې معرفي شوي وي. البته د پښتو د اولسي او لوستي شاعرۍ ځینې مشهور فورمونه سره له بېلګو معرفي شوي، خو بیا هم د پښتو اولسي شاعرۍ لمن ډېره پراخه ده او تر اوسه لا د هر فورم ټول ډولونه او د هغه بشپړې بېلګې نه دي معرفي شوي. په حقیقت کې د پښتو اولسي شاعرۍ هر فورم باید په جلا جلا ډول وڅېړل شي. ځکه چې د ټولو څېړل د یوه کتاب له اوسیلې نه وځي.

په پښتو شاعرۍ کې د مشترکو نظمونو، ازادو شعرونو او د ازادو شعرونو تر څنګ ځینې نور داسې شعري فورمونه هم شته چې په پورتنیو یادو فورمونو کې نه راځي او پښتو شاعرانو د خپل فکر او ژوند د ارتیا له مخې د نورو شعري فورمونو له په پام کې نیولو پرته رامنځته کړي او کومه ځانګړې نومونه نه لري. دا برخه هم یو جلا باب غواړي له همدې کبله که چېرې موږ د پښتو شاعرۍ د نظم د ټولو فورمونو او د هغو بیلا بېل ډولونه په مجموعي ډول تر نظر تېر کړو، نو شمېر به یې تقریباً دوو سوو بېلا بېلو جوړښتونو ته ورسېږي. ګڼ شمېر نور داسې پښتو شعري فورمونه شته چې هغه زموږ په لوستې او اولسي شاعرۍ کې باب دي او په دې اثر کې له راغلو شعري فورمونو څخه جوت توپیر لري، په دې اثر کې نه دي څېړل شوي، یوازې هغه شعر فورمونه تر ښنني لاندې نیول شوي چې په پښتو شاعرۍ کې ډېر

زيات باب دي او يوه تاكلې نومونه لري. په پوره ډول د پښتو د ټولو شعري شکلونو پېژندګلوي د بېلګو راوړل او د هغو د هندسي جوړښت ترسيم د يوه تاکلي اثر په پاڼو کې نه خايېږي.

ما د خپلې علمي ترفيع (پوهنيار رتبې) لپاره د پښتو شاعرۍ يو شمېر مشهور فورمونه څېړلي او د هغو هندسي رغښت مې انځور کړيدی. کېدای شي د ځينو فورمونو د پېژندنې تر منځ تکر هم پېښ شوی وي خو دا ټوله هڅه د وراندېز بڼه لري. د وخت د لندون او د علمي ترفيع د معيار په پام کې ساتلو سره مې اوس په همدې بسنه وکړه. هيله ده وخت د دې امکان برابر کړي چې د خپلې ژبې د نورو درنو ليکوالو او پوهانو په مرسته دا هڅې نورې هم وغځوو.

# اخځونه


۱. د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي درسي لکچر نوټ.

۲. پوهاند زيار پښتو شعر څنګه جوړېږي؟ د اطلاعاتو او کلتور وزارت کابل، ۱۳۶۱کال.

۳. اورنګ زېب ارشاد، بديع اود پښتو شعر، پېښور، دانش کتابتون، ۱۳۶۹ل کال، ۹۵-۱۱۰مخونه.

٤. خوشال بابا،ارمغان خوشال، پېښور، يونيورسټي بك ايجنسي، ٤۹۷مخ.

۵. پيرمحمد کاروان، چنار خبرې کوي، پېښور، دانش کتابتون، ۱۳۷٦ ،
۱۳۷٦کال، ۲۵۳ مخ.

٦. محمد هوتك پټه خزانه، څلورم چاپ، د زلمي هېوادمل په زيار، کابل، ۱۳۵٦ ل کال، ۲۹ مخ.

۷. محمد هوتك پټه خزانه، څلورم چاپ، د زلمي هېواد مل په زيار، کابل، ۱۳۵٦ کال، ۳۰مخ.

۸. عبدالمالك بېکسيار، سوچونه او کړېچونه، ۱۳۷٦ کال، ۱۹مخ.

۹. درويش درانی، هوا او څراغونه، لاهور، ۱۹۹۵ع، کال ۱٤۰مخ.

۱۰. اورنګ زیب ارشاد، بدیع او د پښتو شعر، دانش کتابتون، ۱۳۶۹کال، ۴۲-۴۳ مخونه.

۱۱. اسحق ننګیال، هغه شیبې هغه کلونه، کابل ۱۳۶۵ل کال، ۴۶-۴۷ مخونه.

۱۲. اسحق ننګیال، څاڅکي څاڅکي، د لیکوالو انجمن، ۱۳۶۸کال، ۶۵مخ.

۱۳. علي ګل پیوند، سیلۍ او باولۍ، پېښور، دانش کتابتون، ۱۳۷۶ل، کال ۱۷-۱۸ مخونه.

۱۴. هیله دوه میاشتنۍ خپرونه، ۳ ګڼه، ۱۳۷۶کال، ۲۰مخ.

۱۵. د خوشال رباعیات، کابل پښتو ټولنه، ۱۶مخ.

۱۶. محمد صدیق پسرلی، پسته اور، لاهور، ۱۳۷۴کال، ۱۸۷مخ.

۱۷. حمزه شینواری، د خیبر ورمې کابل، پښتو ټولنه، ۱۳۷۴کال، ۸۴مخ.

۱۸. ډاکتر سید بهاوالدین مجروح، نا اشنا سندرې، پیښور، ۱۹۸۹ع کال، ۱۰۹مخ.

۱۹. ډاکتر امین الحق امین ګوري وریځې، کابل، ۱۳۶۶ کال، ۹۸مخ.

۲۰. عاصي اشنغری، توده وینه، کابل پښتو ټولنه، ۱۳۵۴کال، ۱۸۵مخ.

۲۱. پوهاند عبدالحی حبیبي، د پښتو ادب په تاریخ کې قصیده، کابل، ۱۳۵۷کال، ۱ مخ.

۲۲. محمد هوتك، پټه خزانه، څلورم چاپ، د زلمي هېواد مل په زیار، کابل، ۱۳۶۵ل کال، ۱۹-۲۳ مخونه.

۲۳. پیرمحمد کاروان، چنار خبرې کوي، پېښور، دانش کتابتون، ۱۳۷۶کال، ۴۸مخ.

۲۴. درویش درانی، هوا او څراغونه، لاهور ۱۹۹۵ع کال، ۱۵-۲۰مخونه.

۲۵. پوهندوی عبدالخالق رشید، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی درسي لکچر نوټ.

۲۶. اورنګ زیب ارشاد، بدیع او د پښتو شعر، پیښور، دانش کتابتون، ۱۳۶۹کال.

۲۷. د حاجي جمعه خان بارکزي دیوان، د زلمي هېواد مل تدوین، کابل، د علومو اکاډمی، ۱۳۶۰کال، ۱۸۵مخ.

۲۸. د عبدالحمید مومند دیوان، کابل، د علومو اکاډمی، ۱۳۶۳ل کال،

۴۰۷مخ.

۲۹. د معزالله خان دیوان ، د خیال بخاري ترتیب او تدوین، پېښور، پښتو اکاډمي، ۱۱۲-۱۱۳مخونه.

۳۰. د جمعه خان بارکزي دیوان، کابل ، ۱۳۶۰ل کال، ۱۹۰مخ.

۳۱. د نور محمد لاهو شعري مجموعه، ناچاپ.

۳۲. د معزالله خان دیوان، ۱۱۴ - ۱۱۵ مخونه.

۳۳. پوهندوی نور احمد شاکر، بدیع او بیان، کابل ۱۳۶۵ل کال، ۲۵ - ۲۶ مخونه.

۳۴. د حنان بارکزي دیوان، کابل پښتو ټولنه، ۱۳۳۶ل کال، ۲۲۹ - ۲۳۳ مخونه.

۳۵. اسمعیل یون متکور (شعري مجموعه)، د لیکولو انجمن، ۱۳۶۹ل کال ۸۸ - ۸۹ مخونه.

۳۶. عبدالغفور لیوال، فرهنګ مجله، ۲ ګڼه، ۱۳۵۷ کال.

۳۷. اسحق ننګیال، هغه شیبې هغه ګلونه، کابل ۱۳۶۵ل کال، ۱۳۵ - ۱۳۷ مخونه.

۳۸. پوهاند زیار پښتو شعر څنګه جوړېږي؟ ۱۴۲ مخ.

۳۹. اسدالله اسد، د کانو موسکا، د افغانستان د لیکوالو انجمن، ۵۲ مخ.

۴۰. عبدالغفور لیوال، مخه ښه، پېښور، ۱۳۷۶ کال، ۱-۱۱ مخونه.

۴۱. علي ګل پیوند، سیلۍ، د لیکوالو انجمن، ۷۱ - ۷۲ مخونه.

۴۲. کمال الدین مستان، د ځانو شهادت، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، ۱۳۶۹کال، ۵۰ مخ.

۴۳. احمد تکل، کرونده، کابل، د لیکوالو انجمن، ۱۳۶۹ کال.

۴۴. غوټۍ خاورې د پښتو شفاهي ادبیات (شکل او مضمون) د علومو اکاډمۍ ، ۱۳۶۶ کال ۵۹ - ۶۱ مخونه.

۴۵. تور خان شیرزاد، پښتو سروکی، ناچاپ اثر.

۴۶. // // // //

۴۷. // // // //

۴۸. غوټۍ خاورې هماغه اثر ۵۵ - ۵۶ مخونه.

۴۹. محمد ګل نوري، ملي سندرې، کابل، پښتو ټولنه ۱۳۲۳ل کال هـ

مخ.

۵۰. محمد گل نوري، همدا اثر، بېلا بېل مخونه.

۵۱. محمد گل نوري، ملي سندرې، کابل، پښتو تولنه ۱۳۲۳ل کال ح، ط، ی مخونه.

۵۲. محمد گل نوري، // // // ، ك مخ

۵۳. محمد گل نوري، // // //، ح مخ.

۵۴. محمد گل نوري، // // بېلا بېل مخونه.

۵۵. پوهنیار احمدشاه زغم، پښتو چاربيته (د پوهنملی تیزس) ۱۳۷۱ل کال، ۱ مخ.

۵۶. غوتی خاورې هماغه اثر ۸۲ - ۸۳ مخونه.

۵۷. پوهنیار احمدشاه زغم، هماغه اثر ۱٤ - ۱۵ مخونه.

۵۸. سر محقق زلمی هېوادمل، اولسي سندرې، ۲ توك، ۱۳٦٦ کال، ۸۲ مخ.

۵۹. پوهنیار احمدشاه زغم، هماغه اثر ۱۸ - ۱۹ مخونه.

٦۰. پوهنیار احمدشاه زغم، هماغه اثر ۲۰ - ۲۱ مخونه.

٦۱. غوتی خاورې هماغه اثر ۸۳ مخ.

٦۲. غوتی خاورې هماغه اثر ۸۹ - ۹۱ مخونه.

٦۳. غوتی خاورې هماغه اثر ۹٦ - ۹۷ مخونه.

٦٤. غوتی خاورې هماغه اثر ۱۰۱ - ۱۰٦ مخونه.

٦۵. غوتی خاورې هماغه اثر ۹۸ - ۹۹ مخونه.

٦٦. غوتی خاورې هماغه اثر بېلا بېل مخونه.

